# ويښ ولس

مياشتنۍ مجله

اوله ګڼه / جمادي الأول ۱٤۳۸ هـ فروری ۲۰۱۷ م

- د حضرت محمد مصطفی ص....
- کابل جنایی جرمونه بې کچه...
- زدکړه مو دکار مخه نیسي......
- آزاد بازار یا کیپټلزم...



(شخصیت) شیخ عبدالرحمن عمر....

ملګرو میلتونو نړیوال سازمان...

امریکایی قاضیانو د ټرمپ پر ضد رای ورکړه.



د انټرنیت په مرسته څه څه کولی شئ



هغه خلک چې په سرویښتان نلري هوښیار وي



بردی محمدوف دریم ځل ...مشر شو

ډیورنډ د توافیق لیک.....

هند : ریکاډ مات کړ....



ډونالډ ټرمپ بریا او د امریکا نړیوال سیاست



جنت د لس خلکو دپاره

# ازاد او خپلواک



# ويښ ولس

اوله ګڼه / جمادی الأول ۱۴۳۸ هـ فروری ۲۰۱۷ م

مسؤل
نعمت الله ظهير

نائب مسؤل
قاري سعيد خوستي

تخنيكي چاري
هدايت الله
نعمت الله ظهير



ويښ ولس / WhishWolus



# حضرت ﷺ

## ژوندلیک (لومړۍ برخه)

## دنبوي نسب لړۍ

رسول الله صلی الله علیه وسلم ټبر د عرب په بنو اسماعیل کې دقریشو دقبیلې دهاشم له کورنۍ څخه دی چې دنسب لړۍ یې لاندې ورکړل شوې ده.

محمد بن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدالمناف بن قصی بن کلاب بن کعب بن لؤی بن غالب بن فهر بن مالك بن نضر بن کنانه بن خزیمه بن مدرکه بن الیاس بن مضر بن نزار بن معد بن عدنان.

له تاریخي روایاتو څخه څرګندیږي چې له عدنان څخه تر حضرت اسماعیل علیه السلام پورې دڅلویښتو پلرونو واټن دی خو په همدې منځ کې ټول نومونه ثبت شوي نه دي ځکه عربو به په لړې لیکونو کې یواځې وتلي نومونه یادول هغه نومونه چې له عدنان څخه تر اسماعیل علیه السلام پورې ثبت شوي په دغه ډول دي:

عدنان بن عدو بن المقوم بن تارح بن یشحب بن یعرب بن ثابت بن اسماعیل بن ابراهیم علیهما السلام.



## درسول الله صلی الله علیه وسلم زیږیدنه:

دیوه وتلي مصري هیئت پوهاند محمود پاشا فلکي د ریاضي له څیړنې سره سم رسول الله صلی الله علیه وسلم دربیع الاول په نهمه نیټه ددوشنبې په ورځ چې د571 م کال داپریل دمیاشتې له شلمې نیټې سره سمون خوري زیږیدلی . پلار یې تر پیدایښت له مخې وفات شوی وو , او عبدالمطلب ورباندې محمد نوم کیښود.

رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دوه درې ورځې بي بي آمنې ,بیا دابو لهب وینځې (ثوبیې) او وروسته حلیمې سعدیې تی ورکړ , دعربو دا دود ووچي خپل ماشومان به یې له ښاره دباندې ښځو ته دشیدو ورکولو لپاره ورسپارل ,او په دې کې دا ګټه وه چې یوخو به ماشومانو دعربي ژبې سوچه لهجه زده کوله او بل داچې دعربو ځانګړتیاوې به پکې راتلې په همدې موخه به دکلیو ښځې په کال کې دوه ځله ښار ته راتلې اوماشومان به یې وړل.

درسول الله صلی الله علیه وسلم له پیدایښت څخه څو ورځې وروسته دهوازن کورنۍ ښځې ښار ته راغلې چې په دوی کې یوه هم حلیمه وه , حلیمې بل ماشوم پیدا نکړای شو ,درسول الله صلی الله علیه وسلم مور بي بي غوښتل تر څو خپل زوی ورته وسپاري حلیمې سره له دې چې دهغوی دبې وزلۍ او دماشوم دیتیمتوب له کبله دڅه شي تمه نه درلوده ,خو تر تش لاس تللو ورته ښه وبریښیدله او ماشوم یې له ځان سره واخیست.

رسول الله صلی الله علیه وسلم هلته دبني سعد (هوازن) په کورنۍ کې دوه کاله پاتې شو,خو کله چې حلیمې سعدیې هغه ښار ته راوست نو د(وبا) ناروغي ګډه وه نو بي بي آمنې ورته وویل چې محمد صلی الله علیه وسلم بیا له ځانه سره بوځه ,حلیمې سعدیې ومنله او په یوه روایت رسول الله صلی الله علیه وسلم هلته تر شپږو کلونو پورې پاتې شو.

## درسول الله صلی الله علیه وسلم مبارکه څیره:

درسول الله صلی الله علیه وسلم قد منځنی , غړي برابر , رنګ سور او سپین , تندی پلن , وروځې سره نښتې , پزه یې دنګه او لوړوالي ته مایله وه ,مخ یې ډیر غوښن نه وو ,خوله یې څه ناڅه غټه ,او غاښونه یې سره بیل بیل وو,غاړه یې دنګه اوسریې غټوالي ته مایل وو ,سینه یې پراخه ,دسر ویښتان یې نه ډیرتاو راتاو او نه بیخي نیغ نیغ وو,مبارکه ږیره یې ګڼه وه ,سترګې یې تورې , بانه یې لوی او اوږده وو , وُلي یې غوښن ,او دوږو هډونه یې لوی وو, په سینه مبارکه یې تر نامه پورې دویښتانو یوه نرۍ لیکه وه , په اوږو اولیڅو یې ویښتان وو , دلاسونو ورغوی یې غوښن او پلن وو ,څنګلي یې اوږدې او پوندې یې نازکې وې , دپښو دتلو منځ یې داسې خالي وو چې تر لاندې به یې اوبه تیریدلای شوې.

درسول الله صلی الله علیه وسلم دوُلیو په منځ کې دکوترې دهګۍ په کچ دنبوت (مهر) ټاپه وه ,رسول الله صلی الله علیه وسلم به ډیر ګړندی ګرځیده ,خبرې به یې په دمه دمه کولې , که به یې دکومې خبرې مطلب تاکیدکول وو نو هغه خبره به یې په بیابیا تکراروله ,غږ یې لوړ وو , دخبرو په مهال به یې اکثر اسمان ته کتل ,رسول الله صلی الله علیه وسلم به ډیر لږخندل ,او چې خندا به ورغله نو موسکی به شو.

## درسول الله صلی الله علیه وسلم لباس:

په نبوي لباس کې کومه ځانګړتیا نه وه ,عام کالي یې له څادر ,کمیس او لنګ څخه عبارت وو ,یو روایت راغلی چې یو پرتوګ یې اخیستی وو او دا شوني ده چې اغوستی به یې وي.

ډیری مهال به یې توره پګړۍ په سر کوله ,پګړۍ به په خولۍ برسیره تړله ,خولۍ به یې ساده اوټیټه وه ,شمله به یې کله (په ښي اوږه-ځکه خو هم کیڼ لوري ته دشملې پریښودل له شرعي

له شرعي پلوه بدعت بلل شوي ) او کله هم دولیو په منځ کې پرته وه ,او کله به یې تر غاړه تاووله.

یمني ځادر یې ډیر خوښ وو ,چې هغه به کرښې درلودې , شامي عبا (چوپانه) یې هم استعمال کړې ده ,رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله کله قیمتي او ښکلې جامې هم اغوستې ,په رنګونو کې یې (سپین) رنګ خوښ وو سور رنګ یې نه خوښاوه.

درسول الله صلی الله علیه وسلم به ښه بوی ډیر خوښیده , د(سکته )په نوم عطر به یې ډیر استعمالول ,رسول الله صلی الله علیه وسلم دموزو پېښو کولوډیرخوی نه درلود, خو کومې دځرمنې موزې چې نجاشي ورته رالیږلې وې هغه یې استعمال کړې وې ,معمولا به یې څپلیو ته ورته پڼې (موچڼې) په پښو کولې.

نبوي بستر یوه څرمن وه , چې دخُرما له پاڼو څخه ډکه شوې وه ,او کټ یې په بوڼ اُوبدل شوی وو.

د(محمدرسول الله ) په نوم دسپینو زرو په ګوتې کې یو مهر کندل شوی وو چې دټاپې لګولو په مهال به یې دښي لاس په ګوته کوله ,رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په جنګونو کې خول او زغره هم استعمالوله , داُحد په وتلي جګړه کې یې دوه زغري اچولې وې.

دو همه برخه به انشاءالله په بله ګڼه کښې.



# ډونالډ ټرمپ

## بریا او د امریکانړیوال سیاست راتلونکي بهرنۍ تګلاره

آیا ټرمپ کولای شي د ټاکنیزوسیاسي زلزلې ورسته د نړۍ سیاست او د امریکا برخلیک وټاکي ؟ .آیا اکثریت امریکایان یو سیاسي انقلاب غواړي ؟ نړۍ ته د شوک ورکولو سره سره امریکا یې ټاکنې څه مانا لري؟ آیا پاچا ټرمپ د امریکې متحده ایالاتو ولسمشر به د یو مستبد دیکتاتور په څیر عمل او حکومت ونه کړي ؟ آیا نا اټکل کیدونکی شخصیت ټرمپ به په خپله دا نړۍ له نورو ناآرامیو ، ګډوډیو او ناامنیوسره مخامخ نه کړي ؟

آیا پر ځان مین رواني ناروغ نارسیت شخصیت ټرمپ په خپله د نړیوال امنیت او نړیوال اقتصادي ثبات په وړاندې یو ستر ګواښ نه دی ؟ آیا میلیارډر ټرمپ په ریښتیا سره د چین او مکسیکو په وړاندې د سوداګرۍ نړیواله جګړه پیلوي ؟ د ویرې خپرونکی ټرمپ بریالیتوب سره داسې ډیرې نورې پوښتنې راولاړې شوې دي.

د امریکا د ولسمشرۍ ټاکنو نوی ولسمشر ډونالډ ترمپ ټاکنې سره د نړیوال سیاست په اجنډا کې بدلونونه تمه کیدونکې دي. دا بدلونونه په دقیقه توګه په څه ډول وي ، تر دې دمه په دې اړه یوازې اټکل کیدای او یا تصور کیدای شي. وسمهال یوازې یوه خبره په ډاډه توګه کیدای شي ، هغه دا چې د نړیوالې ټولنې ولسمشران باید په نړیوال سیاست کې د ټرمپ لیوني احتمالي سیاسي بدلونونو ته ځانونه چمتو کړي. جمهوریپال ټرمپ بایدپه دې وپوهیږي ، چې نړیوال اقتصاد ، نړیوال نظم او نړیوال نظم او نړیوال امنیت په راتلونکې کې د درې نړیوال زبرځواکو هیوادونو د چین ولسي جمهوریت ، د امریکا متحده ایالات او د روسیې جمهوریت له خوا ټاکل کیږي.

له څه کم یوې لسیزې راهیسې د امریکا متحده ایالاتو وګړې کبر ،کرکې ،اندیښنې او ویرې تر چاودنې پولې پورې پرسولې دي او هممهاله امریکایان په خپلو کې په سیاسي ډګر کې په دوو قطبونو کې سره ویشلې شوي دي. همدارنګه نړۍ مخکې له مخکې د جنګ جګړو ، یرغلونو ، ویرنو او ناورینونو له امله بې نظمه او ګډوده شوې ده. د امریکایي ټولنې ډیرې وګړې د خپل راتلونکې په اړه په خورا ستره کولکتیفي ویره کې ډوب دي. د نړیوال سوداګریزه مارکیټ برخلیک او د اسعاماوا اسعارو بیې لویدلې دي ،د ډالرو نرخ بې برخلیک مخ پر ځوروند روان دی. نړۍ خپله ساه اخیستنه بنده کړې ده ، ځکه ډیر سخت او نااټکل کیدونکي پیچلي کړکیچن کړکیچونه را روان دي. دا هیواد او دا نړۍ به د خونړیو شخړو او کړکیچونو له نوي پیر سره مخامخ کیږي. ټرمپ تر ولسمشرۍ ټاکنې ګټلو ورځې پورې نه کوم روښانه سیاسي پروګرام درلود او نه سم سیاسي کارپوه پرسونل. ایله اوس یې د خپلې ډلې یا کابینې پر غوراوې پیل کړې دی. د ټرمپ ټاکنیزه کمپاین بهیر د سیاسي بې تجربکۍ ، بې نظمۍ ، ځانځانیۍ ، ناندرۍ او د مسلمانانو په وړاندې له تعصب ډک خبرې او سپکاوي سره مل وو. دغې نالایقه امریکایي جمهوریپال ، توکمپال ، سوډر ، میلیارډر سوداګر د

سپين پوټکو غوسه ناکو او قهرجنو وګړو له رائيو ، انديښنو او ويرې څخه ښه سياسي ګټه پورته کړه. د بريا سره سم دغو قهرجنو سپين پوټکو سختدريځو امريکايانو بارک اوباما ته د خپل لاس منځنۍ ګوته ورجګه کړه. د ټرمپ د دې بريا سره قهرجنو او نهيلي شويو سپين پوټکو امريکايانو د خپل هيواد واک او اختيار بيا ترلاسه کړو. دا هغه واک دی چې د تور پوټکی بارک اوما او د لاتيني امريکايي لړکيو وګړو په لاس کې لويدلي وو. غوسه ناکو قهرجنو سپين پوټکو نارينه امريکايانو په ډونالډ ټرمپ کې يو کاريسماتيک سختدريځه مشرتوب وموند. ټرمپ ټاکنې له دې امله ونه ګټلي ، چې دی يو ځواکمن سياسي کارپوه سړی دی ، بلکې ميرمن هېليري کلنټن يوه کمزورې ،سسته پسته ، کمرنګه او بي فصاحته ښځه وه.

امريکايان تل ځانونه ځښت ډير د ناامنيواو ګواښونو د ويرې له امله په غوسه کې ښيي. ډيری امريکايان بايد په دې پوه شي او اقرار وکړي او دې ټاکنو داجوته کړه ، چې امريکايان خپل هيواد نيم نيمګړي او يا په کافي اندازه سم نه پيژني او آن د دوی روڼ اندې ، ممتازه پرګنه ، د واک او شتمني خاوندانو هم د خپلو ناراضه سپين پوټکو د غوسې او قهرجنو احساساتو په اړه ډيره لږه پوهه درلوده.

د ټرمپ بريا ډيرو امريکايانو ته د ځمکې پرمخ يو قيامت جوړ کړي وو ، ډيرو نور و لپاره دا بري د اوږدې مودې راهيسې د هيواد د سياست او سياسي چارو چلونکي مسلکي اداره چيانو او د واکمنانو په وړاندې يو غوڅ غچ اخيستونکي عمل وو. په په وړاندې Establishment بله وينا سپن پوټکو د امريکا د خپل نفرت څرګند کړو.

په امريکا کې ډيری امريکايان داسي يو احساس او نظر لري ، چې دا امريکايي سيستم نور د ولس په چوپړ کې نه دی ، بلکې د يوي ځانګړي ډلې په خدمت کې دی. دغه ډله يوازي د امريکې اقتصادي ، سياسي واک او اختيار په خپل لاس کې لري.

هيڅ څوک نه پوهيږي ،چې ټرمپ د واک ترلاسه کولو ورسته په نړيوال سياست کې څه ډول پاليسي غوره کوي او څه ډول غبرګون ښيي ، خو د هغه بريا امريکا په يوه کمساري تاريخي ژور کړکيچ کې ډوبه کړی ده. کله چې سړی ټرمپ ګوري ، سړی ته يو سرتمبه رواني ناروغ کوبای د يکتاتور ور په زړه کيږي.

د ټرمپ له بريا سره امريکايانو د سياسي انقلاب يوه تجربه وشکله. د دې ټاکنو د بريا سره د امريکې په متحده ايالاتو کې ډيره کې سپين پوټکو امريکايانو خپل هويت تضمين او ثابت کړو. په دې تاريخي ټاکنو کې خبره يوازې د حکومت له بدليدو څخه ډيره ستره ده. د ټرمپ انقلاب لومړی د خپلو نيوليبرال محافظه کار جمهوريپال ګوند د غړو په وړاندې پيل شوي دی. دغه محافظه کاران په آزاد سوداګريز بازار باندي باور لري.

ټرمپ د نړيوال آزاد سوداګريز بازار يو سوګند خوړلي مخالف سړی دی. همدارزنګه په ناټو کې د متحده ايالاتو رول او ونډه يې تر پوښتنو لاندې راوستي ده .همدا لاملونه کيدای شي ، چې ترمپ نړيوالي اړيکې تر خورا سختو ازمايښتونو لاندې راولي. ټرمپ په نړيوال سياست کې بې تجربه او بي تصميمه سړی دی. دا حالت په نړيوال سوداګري او د امريکې په اقتصادي وده کې د ده عدم قاطعيت ثابتوي او ورسره د نړيوال امنيت په مسئله کې د امريکا او روسې اړيکو کې همدا حالت ليدل کيږي. دا به د ټرمپ يوه ستر ه تيروتنه وي ، چې ده د ټاکنيزکمپاين پرمهال د نړيوال سوداګريز بازار اړوند څه ويلي دي ، دی هغه تر سره او عملي کړي. ټرمپ د خپل ټاکنيز کمپاين پرمهال تل د ناټو غړو هيوادونو ترون مرسته او همکاري باندې خپل شک څرګندکړي دی. د دې څرګندونو پر بنسټ د شمالي اتلانټيک ترون څخه يو مهم مرکز هيواد د امريکې متحده ايالات د وتلو سره به د ناټو غړي هيوادونو نړيوال يووالی په لنډمهال او يا اوږدمهال کې خپل ارزښت له لاسه ورکړي. په عمومي توګه د امريکا متحده ايالات د ناټو غړو هيوادنو سره خپله نړيواله بهرنۍ تګلاره او سياست شريکوي. کيدای شي ټرمپ د دې

سربیره په خپلسر نړیوال سیاست د ناټو غړو هیوادنو سره پرته له مشورې وټاکې.

اټکل یو کال وړاندې د سویډن د بهرنیو چارو وزیر په خپله ټویټر پاڼه کې لیکلي وو ،کله چې ټرمپ د امریکې ولسمشر شي ، موږ باید خپل ځانونه د ځمکې لاندې په سمڅو او خونډې مورچلونو کې وژغورو ،که څه هم دا خبره ډیره له مبالغې ډکه ښکاري ، خو د وسمهال سره لږ څه سمون خوري. کله چې موږ د ټرمپ کاریکاتوري انځورونو ته لږتم شو ، بیا خامخا سړی ته داسې خیال پیداکیږي ، چې د نړۍ حال به له دې ورسته ډیر خراب شي. ټرمپ تل په خپل ټاکنیز کمپاین کې ویلي ، چې ده ته تر هر څه لومړی‌او آن په بهرنې سیاست کې امریکا ورته لومړیتوب لري. د امریکا لومړیتوب دا مانا لري ،چې د نړۍ بیوځلو هیوادونو امنیتي او اقتصادي حالت دې ،نوره بې ثباته او بد برخلیک سره مخامخ شي ، خو امریکایان بایدتر ټولوښه هوسا ژوند ولري. ټرمپ تر اوسه د امریکې بهرني سیاست په اړه کوم مشخص لیدلور نه دی وړاندې کړي. دی چې څه ویل غواړی سړی سم پرې نه پوهیږي ، څه شي چې ده تر اوسه ویلي دي ، له دې څخه ګرده نړۍ اندېښنه او ویره لري. ټرمپ د خپل بهرني سیاست له یوه مشاور سره د امریکې په یوه تلویزیوني کانال کې د مرکې پر مهال داسې ویلي دي ، کله چې موږ اټومي وسلې لرو ، بیا نو ولې موږ هغه ونه کارو ؟ په سټډیو کې راغلي خلک ټول هک پک او حیران پاتې شول او یوه شیبه په ټول سالون کې چوپه چوپتیا خپره شوه. د دې خبرو په غبرګون کې د سي آی اې پخواني مشر مائیکل هیي دن وویل ، دا ډول خبرې په ملکرو کې ویره خپروي او دښمن ننګونو ته هڅوي. د امریکې د اټومي وسلو کوډ د یو داسې بې باکه سړي په لاس کې دی ،چې هغه ډیر ژر په قهر او غوسه کیږي. په دې لنډه موده کې ټرمپ دا ډول خبرې په ځانګړې ډول د اټومي وسلو په اړه ډیرې خوشینونکي ،اندیښمنونکي او نا آرامه کونکي ویناوې کړې دي.

د ټرمپ په اړه یوه خبره سمه ده ، هغه داچې د جګړې او سولې په اړه پریکړې به د هېلیرې کلنټن په پر تله ډیر ژر تر سره کړي. د افغانستان په جګړه کې ، د سوریې په جګړه کې ، د منځني ختیز په کړکیچ کې ، د ایران او پاکستان اټومي وسلې او د اوکراین په کړکیچ کې ګڼ شمیر اکټوران شامل دي. د شاملو ډلو او اړخونو سره باید په ډیره سیاسي ځیرکتیا او هوښیارتیا کې خبرې اترې وشي. ټرمپ په خپلو ټاکنیز کمپانونو کې تل ویلي ، چې ده ته د نړۍ ولسواکه ټومنلي ارزښتونه ، ډیپلوماسي او نړیوال تړونونه هیڅ مانا ، ارزښت او اهمیت نه لري. ټرمپ وایي ، د ایران سره اټومي تړون بیا له سره ارزول کیږي. د ایران د اټومي وسلو تړون سره عربي نړۍ او هم افغانان ډیر سخت مخالفت لري.

د امریکې جمهورییال ګوند سیاست د نویویمو کلونو راهیسې روغه جوړه او پخلاینه د دیپلوماتیک هنر په خیر نه ، بلکې سیاست د یوې وسلې په توګه پیژني. پر ۱۰۱۷ کال کې د جنوري په شلمه نیټه ټرمپ په سپینې مانۍ کې د دموکرات بارک اوباما ځایناستي شي. د ټرمپ جمهورییال یا زروپال ګوند په مشرانو جرګه ، ولسي جرګه او ستره محکمه کې اکثریت په خپل لاس کې لري. په بله وینا د دولت درې ګونې ځواک مقننه ، قضائیه او اجرائیه د امریکایي بنسټپالو په واک او اختیار کې دي .ټرمپ به د نړۍ د یو پیاوړی او قدرتمن سړي په توګه په. آزاده نړۍ کې پر نړیوال سیاست خپل ستر غېزمن اغېز و شیندي. ټرمپ د یو سوداګر په توګه تر اوسه د دولت دریګوني ځواک په دندو باندې هم سم نه پوهیږي. د دې ډیر احتمال شته چې ټرمپ د امریکا او نړۍ لپاره یو ډیر ګواښمن سړی پریوځي. تر اوسه د ټرمپ سیاسي لید لوری سم جوت نه دی. دغي اویا کلن سړی د خپل ټاکنیزه کمپاین د بهیر پر مهال د خپلو پلانونو څخه لږ څه خبر کړي یو ،څرنګه چې ټرمپ په ټاکنو کې ویلي دي او که دی همدغه ډول چلند او حکومت وکړي ، په نړۍ کې به ستر ستر درزونه او اورونه بل شي. د

ټرمپ تر بريا ورسته په ګرده نړۍ کې په تير بيا اروپا او امريکا کې ښې اړخې سختدريځه توکمپاله ګوندونه ،چې دوی په اصل کې د کډوالو ، مسلمانانو او اسلام ضد ډلې ټپلې دي چې په فرانسه ، جرمني ، اتريش ، دنمارک ، هالنډ ، پولنډ ، هنګري ، روسيه او نورو هيوادو کې د خوشاليو نځاګانې کوي.

ټرمپ د خپل ټاکنيزې مبارزې پرمهال دا هم ويلي دي ، چې امريکې ته د ترهګرو هيوادونو څخه د مسلمانانو پر ورننوتلو باندې بنديځ لګوي او يا امريکې ته د مسلمانانو وروتګ اجازه ورنه کړي ، څو له دې لارې د امريکې په خاوره کې د ترهګريزو بريدنو مخه ونيول شي. ټرمپ د امريکې اقتصادي وضعيت د سقوط سره مخامخويني. دی په نړيوال سوداګريز بازار کې د چين هيواد يو ستر سيال ګڼې او ټرمپ په نړيوال سوداګرې بازار کې د چين اقتصادي برياليتوب کې د امريکې د اقتصادي سقوط اصلي لامل ويني.

ټرمپ خپل هيواد د چين ولسي جمهوريت د اقتصادي ځواک د ودې له امله تر ستر ګواښ لاندې ويني. هغه تل په چين تور لګولي او پر چينايانو له ملنډو ډکې ادعاوې لري ، دی وايي دغه هيوا د په نړيوال بازار کې د خپلې کرانسۍ بيه راټيټوي او چين پر نړيوال کچ له دې لارې د خپلو صادراتو څخه ګټه پورته کوي .له دې امله ټرمپ پر چينايي مالونو جګه جزايي ګمرکي ماليه لګول غواړي.که ټرمپ پر چينايي توکو باندې ۴۵ سلنه جزايي ماليه وضع کړي ،بيا نو سمدستي په نړۍ کې سوداګريزه جګړه پيل کيږي .دا جګړه به په لومړۍ ګام کې پر دواړو خواوو ناوړه او منفي اغيز ولري. پر ۲۰۱۶ کال د مې مياشت کې جمهورپپال ټرمپ داسي هم ويلي وو . موږ بايد نوره اجازه ورنه کړو ، چې چين زموږ پر هيواد باندې (اقتصادي) جنسي تيري وکړي.

پوښتنه دا هم راولاړيږي ، آيا د امريکې مشرانو جرګه به په دې وتوانيږي ،چې ټرمپ پام د تخطي او يا د سرې کرښې څخه د اوښتو په صورت کې خپلو مسوولیتونو ته ور وګرځوي.

د امريکې دولتي سيستم پر بنسټ ولسمشر د ولسي جرګې او د مشرانو جرګې کانګرېس له همکاريو پرته حکومتي چارې يا حکومتولۍ نشي پرمخ بيولالي ، کله چې ولسمشر د سيناټ او کانګريس خبره ونه مني او يا همغږي ورسره نشي ولسمشر سمدستي په خپل کاري چيرپال کې بلاک کيږي يا د تصويبدو قانوني لارې پرې بنديږي.ټرمپ له پيله په خپل ګوند کې د لسګونو جګپوړو جمهورپپال مشرانو د مخالفت سره هم مخامخ دی.

ولسمشر ولسي جرګې او مشرانو جرګې يا کانګرېس ته اړ دی ، نه دا چې مشرانو جرګه ولسمشر ته اړه ده. ولسمشر نشي کولالي پرته له کانګريس د حکومت چارې پرمخ بوځي. ټرمپ په ډير ژر په دې وپوهيږي ، چې دی د مشرانو جرګې سره په مخالفت کې حکومتوالۍ نشي کولای. همداراز دي نشي کولای پوځي يرغل په خپلسر پرته د کانګرېس له تصويبه پيل کړي. د امريکې د اساسي قانون پربنسټ ولسمشر کولای شي د کانګرېس د تصويب پرته ځينی پريکړې هم پلي کړي ، لکه امريکې ته سوريايي کډوالو د پلان شوي راتګ مخه نيول ، د چين او مکسيکو څخه پر د وارداتي مالونو باندې جزايي ماليه لګول ، د وسلو ګرځولو نوي قانون بلي کول او د نړيوالو سوداګريز تړونونو لغوه کول او داسي نور موارد شته چې ولسمشر پرته له مشرانو جرګې يا کانګرېسه عمل کولي شي. ټرمپ ويلي ، چې سپينې ماني ته د ورتګ ورسته د سلو ورځو په د ننه کې يو دقيق پلان به د مکسيکو د ديوال جوړول په اړه وړاندې کړي او امريکا ته د ځينو ځانګړو هيوادنو وګړو ورتګ منع کړي او د روغتيا يي بيمې نوي ريفورم به هم وړاندي کړي. ټرمپ د خپلو لومړيو سلو ورځو پلان په ډاګه کولو کې د مکسيکو سره ديوال جوړولو. د اقليم ساتني په اړه د پاريس تړون لغوه کولو په اړوند هيڅ هم ونه ويل.

د دلسمشر يزو ټاکنو ورسته د امريکې په يو شمير ايالاتونو کې د ټرمپ پر ضد او مخالفت کې لاريونونه روان دي ، لاريون کوونکو شعارونه ورکول ، ,, ټرمپه ، زما ولسمشر نه يې,,.

# هلمند



## امريکايي ځواکونو

# لسګونه افغانان ووژل

یاسین مهاجر



په افغانستان کې مېشتو امريکايي ځواکونو يو ځل بيا په هلمند ولايت کې د ملکي خلکو په کورونو او ميشت ځايونو درنه بمباري کړې.

په دې بمبارۍ کې امريکايانو د ښځو او ماشومانو په ګډون ۳۱ تنه عام افغانان وژلي او ټپيان کړي.

پېښه تېره شپه د ياد ولايت په سنګين ولسوالۍ کې رامينځته شوې. ويل کيږي چې د بمونو په نورو انواعو سربېره له B52 ډوله الوتکو څخه هم استفاده شوې له کومو څخه چې امريکايي ځواکونو په افغانستان د پوځي بريد په لومړيو کلونو کې زياته استفاده








د راپورونو سره سم د هلمند د تېرې شپې په بمباريو کې امريکايانو له يوه کور څخه د ښځو او ماشومانو په ګډون ۱۵ تنه وژلي او په بل کور کې يې له ۹ تنو څخه ژوند اخيستی چې ۷ يې ښځې او ماشومان دي.

د بمباريو په دوران کې يو مسجد هم په بشپړ ډول ويجاړ شوی او دوه تنه په کې وژل شوي.

د يادونې وړ ده چې د واټسن موسسې لخوا په ۲۰۱۵م کال يوه احصائيه خپره شوې وه چې پر اساس يې د بهرنيو ځواکونو په بمباريو او هوايي بريدونو کې سل زره (۱۰۰۰۰۰) بې ګناه ملکي افغانان وژل شوي دي.

که څه هم امريکايانو د ۲۰۱۴م کال په اخرکې په افغانستان کې خپل پوځي عمليات ختم اعلان کړي خو عملا يې د پوځي عملياتو په بهير کې د کمښت څرک نه ليدل کيږي او وخت په وخت يې په افغانانو د بمباريو راپورونه ورکول کيږي.

تر اوسه د هلمند ولايت د تېرې شپې د بمباريو په اړه نه امريکايي ځواکونو او نه هم افغان دولت څرګندونې کړي، خو طالبانو د امريکايانو دغه بمباري په کلکه غندلې او هغه يې د «اشغالګرو» وحشت او جنايت بللی.

د تېر نومبر په مياشت کې امريکايي ځواکونو د کندز ښار په بزکندهاري سيمه کې د ملکي خلکو کورونه بمبار کړل او شاوخوا ۴۰ تنه افغانان يې ووژل. هغه مهال ارګ د يوې محتاطې اعلاميې په ترڅ کې د يو تحقيقاتي هيئت د ګومارنې خبر ورکړی و، خو د سنګين د تېرې شپې پېښه په داسې حال کې رامنځته کيږي چې د دريوو مياشتو په تېرېدو لا هم د بزکندهاري په بمبار کې د ارګ د تحقيقاتي هيئت د څېړنو درک نه شته.





# اخ اخ هلمنده اخ سنګینه اخ ماشومانو

حکیم الله حکیمي

په څه ګناه راله سزاوې راکوې سکروټې
ولې ړنده شې څه تنکي ګلان سېزې سکروټې

صابره ربه! دمغرورې بلا خوله خلاسه وه
په بې صبرۍ په ماشو مانو ورېدې سکروټې

اخ !داد کومې پېړۍ خورې نجلۍ ماغزه دي خدایه
اخ !الانښتې یې په سرکې دي تودې سکروټې

قهاره ربه! زموږ یې اوښکې سره ولاړې نشي
خدایه په جوش دې ورته راشه دغصې سکروټې

ا لله دایو ارمان په ژوند دحکیمي پوره کړه
چه هلمند پاڅي اوره وي په امریکې سکروټې



# آزاد بازار

# یا کپټلیزم

شراف الدین جمال زاده

## آزاد بازار یعني څه؟

لکه څرنګه چې د پیرو په اوږدو کې انسانان د خپل ژوند د پایښت لپاره مالي او اقتصادي چارو ته یو جدی ضرورت لري چې نن سبا په نړۍ کې یو شمیر اقتصادي نظامونه شتون لري چې له دې ډلي څخه یو هم آزاد بازار یا کپیټلیزم ګڼل کیږي ، چې د لومړي ځل لپاره د آدم اسمیت له خوا چې د اقتصاد د علم پلار ګڼل کیږي منځ ته راغي.

آدم اسمیت چې د اسکاټلنـډ هیواد اوسیدونکي وو ، د لومړي ځل لپاره یې په اقتصادي چارو کې یو کتاب د ملتــونو په نوم خپور (Wealth of Nations) شتمنــۍ (دارایــې) یا کړ ، چې د همدې کتاب سره آزاد بازار بنسټ کیښودل شو.

دغه نظام پر شخصي ګټه ولاړ دئ یعني آدم اسمیت معتقید وو که خلګ بیله هیڅ ډول مانع څخه د خپلو شخصي ګټو په لاس ته راوړلو کې آزاد پریښودل شي په دې صورت کې د شخصي ګټي په واسطه د ټولنې عامه ګټي هم په به ښه بڼه لاسته راوړل کیږي ، ځکه چې ټولنه هم د خلګو څخه جوړه همدارنګه په اقتصادي چارو کې دولت د هیڅ ډول مداخله حق نه لري ده

همدارنګه دغه نظام پر عرضه او تقاضا باور لري یعني عرضه تولیدات باید د غوښتني سره سم په اندازه او موقع په مختلفو قیمتونو سره بازار ته وراندې شي او تقاضا تولیدات باید د غوښتني سره سم په اندازه او موقع په مختلفو قیمتونو سره رانیول شي. قیمتونه د پټ لاس یا په واسطه ټاکل کیږي. پټ یا مخفي لاس د ملتونو (Invisible Hand) شتمنۍ په کتاب کې یو اصطلاح ده چې مفهوم یې د پیریدونکې او خرڅونکې تر منځ د جنس پر قیمت جوړ راتلل دي. یعني خرڅونکې او رانیوونکې تر منځ که د جنس پر سر په هر قیمت جوړ راشي هغه د جنس قیمت دي او په دې کې دولت د هیڅ ډول مداخلې حق نلري بغیر د امنیت د ټڼګښت.

خو اوس نړۍ کې آزاد بازار په مطلقه معنا نه کارول کیږي بلکې تر یوه حده دولت په اقتصادي او تجارتي بازارونو کې د کنترول رول لوبوئ. یاده دې وي ; چې دغه نظام هم ځینې شېګڼې لري او ځینې نیمګرتیاوي لري.

تر ددې اقتصادي نظام مخکې په نړۍ او ځانګړې توګه یو شمیر هیوادونو کې هیڅ ډول اقتصادي او تجارتي قوانین نه وه وضعه شوي او خاصتاً د انساني زېرمي څخه هیڅ ډول مؤثره استفاده نه کیده بلکې د حیوان ته ورته شکل کار څندې اخستل کیده. ښه مثال یې په جرمني هیواد کې چې د یهودي کارګرو څخه کم تر کمه ۱۲ ساعته کار اخستل کیده هغه کارګران چې د فزیکي ورتیا څخه کمزوري وو او د کارکولو توان یې نه درلوده په هغه ځاي به یې واژه. او همدارنګه کوم چا د خپلو کار کولو په اندازه ملکیت او مفاد لاسته نه راوړل بلکې هر هغه څه چې د دولت له خوا وضعه شوي قانون وو هغه به پلي کیدل چا د ملکي مالکیت داعوه نه شواي کولاي.






## جنايي جرمونه

# بې کچې زيات شوي

کابل که څه هم د هېواد پلازمينه ده او سخت امنيتي تدابير پکې نيول شوي، خو په رڼا ورځ پکې وړې او لوې جنايي پېښې رامنځ ته کيږي، چې په وروستيو کې اوج ته رسېدلې او ولسي خلک يې سخت تنګ کړي، د دوی په وينا: کابل د ويرې او ترهې ښار ګرځېدلی، که چيرې په کوم موټر کې هم تر يوه ځايه ځې، نو په ښه زړه نشې تلی، ولسي خلک او په ځانګړې ډول د کابل ښاريان په دې برخه کې له امنيتي سرتېرو شکايت کوي او هغوی هم په دې پېښو کې ښکيل بولي.

که څه هم چې امنيتي چارواکي د جنايتونو زياتوالی مني، خو وايي، چې: د مخنيوي لازمې هڅې يې کوي، په کابل کې د ۱۰۱ اسمايي زون پوليس وايي، چې: په همدې پار يې په وروستيو يوه مياشت کې ۲۹۵ کسان نيولي والو غلاوو، د مخدره موادو خرڅلاو، قاچاق، ترور او نورو غير اخلاقي کارونو کې يې لاس چې په وژنو، وسله درلود. د کابل د ۱۰۱ اسمايي زون قوماندان عبدالرحمن رحيمي چې وړمه ورځې ياد نيول شوي کسان رسنيو ته ښکاره کول وويل: د نيول له شوېو له ډلې يې ۱۷ کسان په وژنو تورن دي او پاتې نورو يې هم بيلابيل جرمونه ترسره کړي، چې ټولو ته د محکمې دوسيې جوړې شوې دي.







سيف الله څرګند

اوله برخه

## د ملګرو ملتونو نړيوال سازمان :

د لومړۍ نړيوالې جګړې په ورستيو کې د نړۍ مشران په دې صلاح شول چې دنړيوالې سولې او امنيت لپاره يو نړيوال سازمان جوړ کړي چې عمده موخې به يې د هېوادونو د سياسي خپلواکي تحقق او د ځمکنۍ بشپړتيا تضمين او نړيوال امنيت ساتل وي چې په پايله کې د ملتونو ټولنه جوړه سوه خو د ځينو مشکلاتو له امله د ملتونو ټولنه د اهدافو په ترلاسه کولو کې پاته راغله او ويې نسوکړای چې د دوهمې نړيوالي چګړې مخه ونيسي چې دلته يې څو نقطې په لنډ ډول تشريح کړو.

په ورسايلز تړون کي د ميثاق درج کول د دې سبب سو چې ټولنه دې د سترو فاتحو هېوادونو د ګټو څخه د دفاع قرباني سې که څه هم دا دوه سندونه ورسته سره بيل شول خو د سترو قدرتونو نفوذ په خپل حال پاته سو.

د رائي اچوني په برخه کې يو لړ ستونزې د ټولنې ته د يو لړ مشکلاتو د راوړلو سبب شوې.

د شورا او اسمبلې د واکونو سم نه تعريفيدل او د يو شمير وکونو ګډ استعمالول د ټولنې لپاره سرخوږی شو.

د شورا د دندو پراختيا.

له سازمان څخه د وتلو شونتيا.

اجرائوي ضمانت نه شتون او داسې نور لاملونه ول چې د ملتونو ټولنه يې په خپلو کارونو کې پاته راوستله.

## د ملګرو ملتونو تاريخي شاليد :

په خپلو کارونو کي د ملتونو د ټولنې پا ته را تلل نړيوال قدرتونه مجبور کړل تر څو د يو داسې نړيوال سازمان په لټه کي سې چي پورته ستونزو ته د ځواب ويلو تر څنګ نړيواله سوله تامين کړي ؛ په همدې مقصد په نړيواله کچه هڅې پيل سوې ؛ د متحدينو اعلاميه ، د اتلانتيک منشور ، د مسکو کنفرانس ، د ډومبارټن اوکس او ايټاليا کنفرانسونه او د سانفرانسيسکو کنفرانسونه د پورته نيو هڅو غوره بېلګي دي.

**۱:** د متحدينو اعلاميه: د ۱۹۴۱ کال د جون په کي مياشت متحدينو د لندن په ښار کي يوه ګډه اعلاميه خپره کړه چي په نړيوال امنيت ، سوله ، اقتصادي او فرهنګي همکاري ټينګار په کي شوی و ؛ دا د ملګرو ملتونو د نړيوال سازمان د منځ ته راتګ په برخه کي لومړي هڅه وه.

**۲ :** د اتلانتيک منشور: د ۱۹۴۲ کال د اګسټ په ۱۴ د

امریکا ولس مشر فرانکلین روزولټ او د لندن لومړی وزیر ویسټون چرچل د اتلانتیک په سیمه کې یو تړون امضا کړ ؛ په کې ویل شوي ول ( ترڅو چې یو دوامداره او پراخ نړیوال نظام نوی جوړ شوی د دولتونو بې وسلې کول اړین دي).

**۳:** د ملګرو ملتونو اعلامیه: د لومړی ځل لپاره په ۱۹۴۲ کال د جنوري په لومړۍ نېټه چې امریکا په نړۍ واله جګړه کې ښکېل سوه ، په واشنګټن کې د ۲۶ متفقو هیوادنو تر منځ یوه اعلامیه لاسلیک شو چې د محوري هیوادونو( المان ، ایټالیا او جرمني) په وړاندې د هرډول اقتصادي او نظامي همکاریو په کار اچولو ټینګار په کې شوی و ، له دې ورسته د ځینو نورو هیوادنو تر منځ هم د ملګرو ملتونو په نامه هوکړه لیکونه لاسلیک شول ؛ په ۱۹۴۳ کال سپټمبر په میاشت کې د امریکا د مشرانو جرګې یو د پول برایټ تر نامه لاندې یو پرېکړه لیک لاسلیک کړ چې له مخې یې له کانګرس څخه غوښتنه کړې وه چې د یو نړیوال سازمان له جوړېدو سره دې موافقه وکړي ؛ د همدې غوښتنې په اساس د مشرانو جرګې د سناتور کونالي طرحه ومنله.

**۴:** د مسکو کنفرانس: د ۱۹۴۳ کال د اکتوبر په میاشت کې د امریکا د بهرنیو چارو وزیر ، د روسي هیواد د بهرنیو چارو وزیر ، د چین لوی سفیر او د انګلیستان هیواد د بهرنیو چارو وزیر یوه ګډه اعلامیه خپره کړه چې د یو داسې نړیوال سازمان چې د سوله غوښتونکو هیوادنو د خپلواکۍ اصل ته په کتو سره د نړۍ ټولو هیوادنو ته د غړیتوب حق پکې ورکړل سوی وي ټینګار وکړ. په دوام یې د تهران کنفرانس جوړ شو کنفرانس کې د انګلیستان لومړي وزیر ویسټون چرچیل ، د امریکا ولس مشر روزلټ او د شوروي اتحاد ولس مشر ستالین د نړۍ والي سولي په اړه خپل نیت او ټینګار څرګند کړ.

**۵:** د ډومبارټن اوکس او ایټالیا کنفرانسونه: په ۱۹۴۴ کال د امریکا په واشنګټن ویلای ایالت کې د انګلیستان ، امریکا او شوروی اتحاد له کارپوهانو څخه دوه ګډ کمېسیونونه جوړ شول چې له یو لړ خبرو ورسته یې په ۱۲ څپرکیو کې یو سند چمتو کړ چې د سازمان په اصولو ، اهدافو ، جوړښت ، د نړیوالې سولې په ټینګښت او امنیت او د هیوادنو تر منځ په اقتصادي همکاري په کې بحث شوی و.

د نړیوالې سولې او امنیت مسؤولیت امنیت شورا ته په غاړه ور اچول شوی و چې له پنځو لویو قدرتونو څخه جوړ و خو د رایې ورکولو او پرېکړو د څرنګوالي په اړه ده اختلاف له امله موضوع د ایټالیا کنفرانس ته وځنډول شوه. د ۱۹۴۵ کال په فیبروري کې د ویسټون چرچېل ، فرانکلین روزلټ او ستالین په ګډون د ایټالیا په کنفرانس کې په اختلافي موضوعاتو بحث وسو ، پرېکړه و شوه چې په سنفرانسیسکو کې دې یو بل کنفرانس جوړ سې چې د ملګرو ملتونو منشور چې څنګه د ډومبارټن اوکس په کنفرانس کې وړاندې سوی نهایي شي.

د سنفرانسیسکو کنفرانس: د مخکې ذکر شویو کنفرانسونو په تعقیب د سنفرانسیسکو کنفرانس جوړ شو. د سنفرانسیسکو د کنفرانس په جوړېدو سره د ملګرو ملتونو د نړیوال سازمان د جوړېدو طرحه بشپړه سوه ؛ نوموړي کنفرانس د نړیوال سازمان د جوړېدو په اړه ( د ملګرو ملتونو د کنفرانس) نوم ځان ته غوره کړ.

د سنفرانسیسکو کنفرانس تر جوړېدو مخکې د ډومبارټن اوکس په کنفرانس کې جوړه سوې طرحه له ځینو مخالفتونو سره د رایو په اکثریت سره په ۱۹ څپرکیو او ۱۱۱مادو کې تصویب او د لاهای د نړیوالې محکمې نه بېلېدونکي برخه وګڼل شوه خو د ۱۹۴۵د اکتوبر په ۲۴مه امریکا ، چین ، فرانسې او انګلستان له خوا د سند له ترلاسه کولو ورسته د اجرا وړ وګرځېد او د ۱۹۷۱م زېږیز کال کې عمومي اسامبلې د اکتوبر په ۳۱مه د اکتوبر ۲۴ ورځ د یو پرېکړه لیک په ترڅ کې د (ملګرو ملتونو نړیواله ورځ) په توګه ونوموله.

## د ملګرو ملتونو موخې او اصول :

- د نړیوالې سولې او امنیت ټینګښت.
- د حقوقي برابري او خپلواکۍ اصل ته په کتو سره د هیوادونو ترمنځ د دوستانه اړیکو پراختیا.
- د نړۍ د ټولو ولسونو ګډو موخو ته د رسېدو او کارونه د همغږي په موخه د یو ګډ او باوري مرکز شتون.
- پورته موخو ته د رسېدو او د چارو د شه سمبال لپاره ملګرو ملتونه د منشور د دوهمې مادې له مخې لاندي اصول د کار په لومړیتوبونو کې نیسي.
- د ملګرو ملتونو سازمان د ټولو غړو هیوادونو د خپلواکي او برابري اصل ته په کتو سره جوړ سوی ده.
- غړي هیوادونه لکه ځنګه چې یې ژمنه کړي ده په منشور کي راغلي وعدې په ښه نیت تر سره کړي.
- د غړیو هیوادونو تر منځ ستونزې باید په سوله ایز ډول حل سې.
- غړي هیوادونه باید د هر ډول فشار چي د ملګرو ملتونو له اصولو سره په ټکر کي وي د یوبل په مقابل کي کار وانه خلي.
- غړي هیوادونه باید د سازمان د ټولو پرېکړو ملاتړ وکړي ؛ که چېرته د ملګرو ملتونو سازمان د یو سرغړوونکي هیواد په مقابل کي قهری عمل کوي ؛ غړي هیوادونه باید له سرغړونکي هیواد سره له مرسته کولو څخه لاس په سر سې.
- هغه مسایل چي د هیوادونو په کورنیو چارو پسې اړه لري د سازمان له لاسو وهنې څخه خوندي دي ؛ خو تر هغه وخت چي د نړیوال امنیت او یا نورو غړو هیوادونو ته ترې خطر مواجع نه سي ؛ د خطر په صورت کي د ملګرو ملتونو د سازمان له قهری اقداماتو څخه خوندي نه دي.

## د ملګرو ملتونو سازمان جوړښت :

**د ملګرو ملتونو په سازمان کي د غړیتوب شرایط:**

له تاریخي اړخه کولای شو د ملګرو ملتونو سازمان په دوه برخو ووېشو.

۱ : اصلي یا بنسټ اېښودونکي غړي

۲ : نوي غړي.

**اصلي یا دایمي غړي:** دایمي غړي هغه هیوادونه چي د سنفراسیسکو په کنفرانس کي یې د بنسټ اېښودونکو په توګه برخه اخیستي وه او د ملګرو ملتونو اعلامیه یې لاسلیک کړې وه چي شمېر یې ۵۱ ته رسېږي.

د ملګرو ملتونو منشور درېیمه ماده د اصلي یا بنسټ اېښودونکو غړو په اړه داسې وایې ( د ملګرو ملتونو اصلي غړي هغه هیوادونه دي چي د سنفرانسیسکو په کنفرانس کي یې برخه اخیستې ده او د ملګرو ملتونو اعلامیه او منشور یې لاسلیک کړی وي ).

**نوي غړي:** د منشور د څلورمې مادي له مخي نوي غړي باید په لاندي شرایطو برابر وي ترڅو د ملګرو ملتونو د سازمان غړي .شي

۱: دولت والي

۲: سوله غوښتنه

۳: د سازمان د پرېکړو درناوی

۴: منشور پلي کول

پورته ذکر شوي شرطونه باید د یو هیواد له خو پوره شي ترڅو د ملګرو ملتونو د نړیوال سازمان غړی شي ؛ دا ډېره مهمه ده ترڅو د ملګرو ملتونو سازمان د ملتونو ټولنې په برخلیک اخته نه شي.

د نویو غړو د منلو طرزالعمل د ملتونو د ټولنې په نسبت پېچلي ده ؛ په ملتونو ټولنې کي د نویو غړو د منلو واک ټول له عمومي اسامبلې سره و خو دلته باید غړیتوب ته نوماند هیواد د امنیت شورا

په سپارښتنې سره عمومي اسامبلې ته د رايې اخيستلو لپاره وېپېژندل شي.

د امنيت شورا له خوا ،سپارښتنه ، دلته د تصميم نيولو په معنا ده او د امنيت شورا دائمي غړي د ويټو له حق څخه برخمن دي چې روسيه ده ډېر ويټو کاروونکو هيوادنو په سر کي قرار لري.



هغه هيوادونه چې د ملګرو ملتونو سازمان غړي نه دي د منشور پرېکړو او احکامو ته په احترام سره کولای شي چې په حقوقي مسايلو کي د امنيت شورا پام ځان ته را واړوي او له مرستې څخه يې برخمن شي.

په سيمه ايز او نړيواله کچه غير غړو هيوادونو ته په اقتصادي ، سوله غوښتنه او ځينو نورو برخو کي د همکاري ، نظر او کتلو حق وکړل سوي ده خو رايه نه شي ورکولای.

د ملتونو ټولنې خلاف د ملګرو ملتونو سازمان ته له جغرافيوي پلوه د هيوادونو لوی والی يا کوچنيوالی د اندېښنې وړ خبره نه ده ؛ په ۱۹۶۵م کال کي مالديف ۳۰۰ کيلومتره پراخوالي او ۱۱۰ نفوس په لرلو سره د ملګرو ملتون سازمان غړی شو خو په داسې حال کي چې د پراختيا له او نفوس له نظره کوچيني هيوادونو ته به نړيواله کچه په نړيوالو سازمانونو کي په اسانه غړيتوب نه ورکول کېده.

## د ملګرو ملتونو سازمان څخه د وتلو يا ايستلو شرايط:

### الف: وتل

د ملګرو ملتونو د سازمان څخه د وتلو لپاره خاص شرايط نه دي په ګوته سوي او داسې هم ويل شوي دي چې د هيوادنو د خپلواکي اصل ته په کتو سره هر هيواد د ارادې د خپلواکي حق ده ؛ خو دا ډول پېښه تر اوسه پوري يوځل په ۱۹۶۴م کال کي د اندونيزيا له خوا چې ماليزيا ته د ملګرو ملتونو له خوا د غړيتوب د ورکولو په غبرګون کي د ملګرو ملتونو له سازمان څخه وو ته را منځ ته شوي ده خو په ۱۹۶۶م کال کي په اندونيزيا کي له کودتا څخه ورسته نوي حکومت بېرته له سره له ملګرو ملتونو سره خپله همکاري پيل کړه.

### ب: ايستل

د منشور د ۶ مادي په اساس که کوم غړی هيواد د منشور له پرېکړو څخه سرغړونه وکړي د عمومي اسامبلې او امنيت شورا له خو به د ملګرو ملتونو سازمان څخه وايستل شي.

دا ډول پېښه يوځل په ۱۹۳۹م کال کي د شوروي اتحاد له خوا په فينلينډ د بريد له امله رامنځته شوي ده چې له امله يې روسيه ده ملتونو له ټولنې څخه و ايستل شوه.

### ج: غړيتوب ځنډول

د منشور د ۵۰ مي مادي له مخي کله چې د امنيت شورا د کوم غړي هيواد په وړاندي په قهري عمل لاس پوري کړي ؛ د امنيت شورا پ وړانديز سره د نوموړي هيواد حقوق ځنډېږې او له ګټې اخيستلو څخه يې محروم کېږې خو د امنيت شورا له خوا بېرته ور کېدای شي.

### د: د رايې حق

که کوم غړي هيواد د مالي ونډې په ورکړه کي له دوه کلونو ډېر ځنډ وکړي د رايې ورکولو حق ورڅخه اخيستل کېږي په هغه صورت کي چې د ونډې نه وکړه د مالي بې وسې له امله نه وي.

### د ملګرو ملتونو اصلي څانګي:

امنيت شورا

عمومي اسامبله

اقتصادي او ټولنيزه شورا

نړيواله محکمه

دار الا نشا

د قيموميت شورا

## لومړي ځانګه: امنیت شورا

د منشور د ۲۴ مادي په اساس امنیت شورا د ملګرو ملتونو د سازمان اصلي ځانګو څخه ګڼل کېږي او د نړیوالې سولې او نړیوال امنیت د ټینګښت مسؤولیت ور په غاړه ده.

د منشور د ۲۳ مادي په اساس د امنیت شورا غړیو هیوادونو شمېر ۱۵ ده او په دوه برخو وېشل شوي دي.

دایمي غړي هیوادونه:

غیر دایمي غړي هیوادونه:

دایمي غړو: هیوادونو شمېر ۵ ده چي له روسیه ، چین ، فرانسه ، انګلستان او امریکا څخه عبارت ده او د امنیت شورا د غړیتوب سربېره د (ویټو) خاص حق هم ورسره ده.

غیر دایمي غړي: هیوادونو شمېر ۱۰ ده چي له یوې دورې څخه زیات ځان نه شي نوماند کولای ؛ تر ۱۹۶۵ کال پوري غیر دایمي غړو شمېر ۶ وو خو په ۱۹۶۳ م کال کي په عمومي اسامبله کي له تغیر څخه ورسته چي په ۱۹۶۵م کال کي د اجرا ور وګرځېد شمېر یې ۱۰ ته لوړ شو چي تر اوسه (۲۰۱۷)م پورې داسې پاتې ده.

په امنیت شورا کي د مسایلو د حل او کار د پرمخ بېولو لپاره رایه اچونه خپل اهمیت لري ؛ په داخلي مسایلو کي رایه اچونه اسان او ساده ده ځکه د دایمي او غیر دایمي غړو ترمنځ کوم فرق نشته تنها د رایو شمېر ته اهمیت ورکول کېږي او د یو کار د اجرا لپاره ۹ مثبتو رایو ته اړتیا شته او دایمي غړي هیوادونه د وېټو له حق څخه ګټه نه شي پورته کولای خو په د باندني مسایلو کي رایې فرق کوي په ۱۴ مثبت او یو دایمي غړي منفي رایې سره موضوع رد یا وېټو کېدای شی.

د امنیت شورا دندې او واکونه:

لکه څنګه چي مو مخکې یادونه وکړه د نړیوالې سولې او نړیوال امنیت ټینګښت او ساتنه د امنیت شورا مسؤولیت ده ؛ امنیت شورا کولای شې چي د دوو لارو څخه د نړیوال امنیت د ټینګښت او سولې ساتنې په موخه مسایلو ته لاس رسې پیدا کړي.

**الف**: سوله ایز حل په موخه داخله کول.

د غړو هیوادونو ترمنځ د ستونزو د حل په موخه د ملګرو ملتونو سازمان کولای سې چي مداخله وکړي او ستونزې په سوله ایز ډول حل کړي چي معمولا لاندې برخې پکې شاملې دي.

خبري

منځګړیتوب

جوړجاړی

داوري

قضایي رسیدګي

غیر غړي هیوادونه هم کولای شي چي له نورو هیوادونو سره ستونزمن مسایل د امنیت شورا ته وړاندي کړي ترڅو د ستونزو په حل کي ورسره مرسته وشي خو نوموړي هیواد باید د منشور اصولو ته درناوی ولري.

د ستونزو په سوله ایز حل کي د ملګرو ملتونو همکاري تر ډېره حده د سپارښتنې او توصیې پر بنسټ ولاړه ده.

**ب**: قهري اقدامات ترسره کول.

که له یو هیواد څخه نړیوالې سولې ته ګواښ متوجه شي د اړتیا په وخت کي د امنیت شورا کولای شي زور او یا هم قهري اقدامات ترسره کړي ؛ لومړی هڅه کوي چي له نوموړي هیواد سره د ټولو غړو هیوادنو په واسطه اقتصادي ، سیاسي او داسې نوري اړېکې پرې کړي خو که دا کاپي ونه کړې کولای شي چي له زور څخه کار واخلي خو دا امنیت شورا له لوري دا ډول اقدامات غوځ اکثریت رایو ته اړتیا لري ؛ له دې څخه دا په ډاګه کېږي چي د پنځه دایمي غړو په وړاندي زور کارول د امنیت شورا له لوري ناشونی ده.

**ویټو**

ویټو په امنیت شورا کي د پرېکړلیک د تصویب په مهال د هر

دایمي غړي منفي رایه ته ویل کېږي. لکه څنګه چې مو مخکې یادونه وکړه یواځې د نړیوالو مسایلو لپاره کارول کېږي.

د ملتونو ټولنې په مېثاق کې راغلي ول چې د یو هیواد له لوري په غړي هیواد یرغل په ټولو د یرغل په معنا ده ؛ که د کوم هیواد له لوري دا ډول عمل تر سره شې لومړی باید ټول هیوادونه اقتصادي او سوداګریزې اړېکې ورسره پرې کړئ خو کوم اجرایوي ضمانت شتون نه درلود. دا د ملتونو د ټولنې د بې ثباتي لامل شو ترڅو ځینې هیوادونه د ځان ساتنې په خاطر له ټولنې څخه وځي. خو د ملګرو ملتونو په سازمان کې لویو قدرتونو ته د ویټو حق ورکړل شوی او له دې حق څخه کله نا کله غیري عادلانه ګټه اخیستل کېږي او دلویو قدرتونو له خوا د ځان په خلاف تصامیمو د مخنیوي لپاره ګټه ځینې اخیستل کېږي چې د ملګرو ملتونو سازمان د ثبات یو دلیل یې هم ګڼلای شو.

## د امنیت شورا د خپلې کړنلارې له مخي دوه ډوله غونډې دایروي.

**الف:** نوبتي غونډې چې په کال کې دوه ځله دایرېږي.

**ب:** غیر نوبتي غونډې چې د اړتیا په مهال د عمومي اسامبلې په توصیه ، د هر غړي هیواد او یا عمومي منشي په غوښتنه جوړېږي.

## دویمه څانګه: عمومي اسامبله:

عمومي اسامبله د یو نړیوال مجلس په توګه د نړیوالې ټولنې د غړو د نظریاتو او بحثونو ځای دی.

عمومي اسامبله د ملګرو ملتونو له غړو څخه جوړ مهم مشورتي ارګان دی. د ملګرو ملتونو هر غړی دولت کولی شي چې په اسامبله کې پنځه تنه استازي ولري او هر هېواد یوازې د یوې رایې حق لري.

د ملګرو ملتونو د سازمان له جوړېدو څخه ورسته د یوڅه وخت




لپاره د نویو غړو د ورتګ مخه ډب وه چې مهم دلایل یې د امریکا او روس تر منځ سیاسي سیالي او د ځینو هیوادونو د جغرافیې او نفوسو له نظره کوچنیوالی و خو په اوبایمو لسیزو کې ډېرو هیوادنو واکولای شول چې د ملګرو ملتونو غړیتوب تر لاسه کړي چې له دې سره عمومي اسامبلې نړیوال ماهیت تر لاسه کړ په عمومي اسامبله کې عادي او داخلي مسایل په اکثریت د رایو تصویب کېږي خو د باندني او مهم مسایل په ۲ثلثه ده رایو سره تصویب کېږي.

## د عمومي اسامبلې واکونه او دندې په دوه برخو وېشلای شو.

**الف:** انحصاري واکونه هغه دي چې د سازمان نوري څانګې په کې د لاس وهنې حق نه لري او حق یې یواځې عمومي اسامبلې ته ورکړل شوی ده چې په لاندي ډول دي.

د فرعي څانګو جوړول
د نړیوالو حقوقو تدریجي پراختیا او تدوین
نا خپلواکه سیمې
او د ملګرو ملتونو داخلي مسایل.

**ب:** د عمومي اسامبلې غیر انحصاري واکونه هغه دي چې ټول صلاحیت یې له عمومي اسامبلې سره نه ده چې د طرحې له جوړولو څخه ورسته یې د امنیت شورا ته د توصې په ډول واړاندې کوي چې هلته د موضوع ارزښت ته په کتو سره د تصویب یا رد کېږي چې د رایې د ورکول د ډول په اړه یې مخکې یادونه شوې ده.

د عمومي اسامبلې د کړنلارې له مخې درې ډوله غونډې کوي

۱.عادي غونډې
۲.ځانګړې غونډې
۳.بيړنۍ غونډې

عادي غونډې په کال کې يوځل د ډېسمبر د مياشت په درېمه اونۍ کې د سې شنبې په ورځ جوړېږي ؛ د عمومي اسامبلې مقر په نيويارک ښار کې ده.
ځانګړې غونډه د امنيت شورا د ريس او يا غړو په غوښتنه جوړېږي.
پرېکړليک له مخې د امنيت شورا د A(v)بيړنۍ غونډه ۳۷۷ اکثره او يا يوه غړي په غوښتنه سره په ۲۴ ساعتو کې رابلل کېږي.

## درېمه څانګه: نړيواله محکمه:

د دې قضا يې اورګان بنسټ د لومړۍ ځل لپاره په ۱۹۰۷ کال کې د لاهای د سولې په دوهم کنفرانس کې کېښودل شو ؛ د کنفرانس ګډونو والو د دوه نړيوالو محاکمو د جوړېدو وړانديز وکړ که څه هم محاکمې جوړې نه شوې خو د يو نړيوال قضايي اورګان د جوړېدو احساس يې را منځ ته کړ.

د ملتونو د ټولنې له جوړېدا سره يوځل بيا د يو نړيوال قضايي اورګان د جوړېدا هڅې و شوې چې د مېثاق په څلورمه ماده کې داسې درج کړې دي.

(د ټولنې شورا ته دنده سپارل کېږي چې د يوې نړيوالې دايمي محکمې طرحه تنظيم او د ټولنې غړو ته يې وسپاري. محکمه به د ټولو هغو نړيوالو شخړو او مسايلو د څېړلو او رسيدګۍ واک ولري چې دوی ته ارجاع يا وړاندې کېږي. دغه راز که چېرې د عمومي اسامبلې او شورا له خوا د مشورتي نظر څرګندولو په موخه کومه قضيه محکمې ته ارجاع شي ، محکمه بايد خپله بشپړه بېطرفي وساتي)

همدې مادې په اساس د ملتونو ټولنې له خوا د حقوق پوهانو يو کمېټه جوړه کړه چې ترڅو د محاکمې د اساس نامې لپاره يو مقدماتي طرحه چمتو کړې.

چې تر يو لړ اصلاحاتو ورسته د عمومي اسامبلې له خوا په ۱۹۲۰م کې تصويب شوه

نړيواله محاکمه له ۱۵ تکړه قاضيانو څه جوړه سوې وه چې ۱۱ يې دايمي او نور څلور يې غير دايمي ول چې د شورا د رايو په اکثريت سره د ۹ کالو لپاره ټاکل کېدل.

د ملتونو د ټولنې له ړنګېدا سره د نړيوالې محاکمې په اړه هم سوالونه راپيدا شول ؛ د ۱۹۴۵م کال د افريل له ۹مې تر ۲۰مې غونډه کې پرېکړه وشوه چې نوي محاکمه دي جوړه سې چې يو لوی دليلی يې په له مخکې جوړې شوې محاکمې سره د امريکا او شورې پرېکون وو. نوي محاکمه له ۱۵ دايمي قاضيانو څخه جوړه شوي ده.

د سنفرانسيسکو په کنفرانس کې د منشور د لاسليک تر څنګ د نړيوالې محاکمې اساس نامه هم له منشور سره ضميمه او لاسليک شوه او د منشور نه بېلېدونکې برخه ګڼل کېږي. د منشور د ۹۳ مادې له مخې د نړيوالې محاکمې اساس نامه په ټولو غړو ومنل شوه.

## څلورمه څانګه: اقتصادي او ټولنيزه شورا:

اقتصادي او ټولنيزه شورا د ملګرو ملتونو له اصلي اورګان څخه ګڼل کېږي چې ۵۴ غړي لري. هر کال ۱۸ نوي غړي د عمومي اسامبلې له لورې د درو کلونو لپاره ټاکل کېږي.

انشاءالله دوهمه برخه به په بله ګنه کښې.....

# کندهار

## د متحده عربي اماراتو سفير ومړ

د افغانستان په کندهار ولايت کې د متحده عربي اماراتو ټپي شوي سفير جمعه محمد عبدالله الکعبي د ټپونو له کبله ساه ورکړه.

د کندهار ولايت د مقام په ميلمستون کي د مرغومي په ۲۱ [د جنوري په لسمه] چاودنه وسوه چي پکي د عربي متحده اماراتو د پنځو ډپلوماټانو او يوه سفير په شمول ۱۳ تنه ووژل سول او ۱۸ نور ټپيان سول.

سفير جمعه محمد عبدالله الکعبي او محمد علي البستکي، عبدالله محمد عيسى، احمد رشيد سليم،احمد عبدالرحمن التونايجي او عبدالحميدسلطان الحمادي هغه پنځه عرب ډپلوماټان و چي په دي حمله کي وژل سو.

د کندهار د والي مرستيال عبدالعلي شمسي، د ولايت د بهرنيو اړيکو مشر شاه احمد سعيد، د مشرانو جرگي غړی سراج الدين صفري، د ولسي جرگي غړی بازمحمد جوزجاني، په امريکا کي افغان ډپلوماټ يما قريسي، د پخواني ولسمشر د تره زوی هاشم کرزی او يو بل ځوان هم په دي پيښه کي وژل سوي افغانان دي.

افغان ولسمشر محمد اشرف غني د هغه پر مړينه خواشيني ښرگنده کړې او د دغه هېواد له خلکو او دولت سره يې غمشريکي کړې.

ولسمشرۍ ماڼۍ د اعلاميې په خپرو ليکلي، چې د متحده عربي اماراتو سفير د سولې او پرمختګ لپاره تر ټولو لويه قرباني ورکړه او د افغانستان خلک به يې هېر نه کړي. ولسمشر غني ويلي "متحده عربي اماراتو په ډيپلوماتانو بريد له دغه هېواد سره زموږ اړيکې نشي زيانمنولی.

افغان ولسمشرمحمد اشرف غني متحده عربي اماراتو ته سفر وکړ او د پېښې د قربانيانو له کورنيو سره يې خپله غمشريکي ښرگنده کره.



د اماراتو سفير کندهار ته د يوه دارلايتام د بنسټ ډبرې اېښودلو لپاره تللی و چې د چاودنې پر مهال د کندهار والي همايون عزيزي په مېلمستون کې د ماښامنۍ په خوړلو بوخت ول.

د اماراتو د امير د چارو اړوندې ادارې په يوه خبرپاڼه کې ويلي: "په ډېرې خواشينۍ سره د هېواد د شهيد شوي بچي مړينه اعلانوو. نوموړي د انسانيت لپاره خپل پاک روح قربان کړ.

طالبانو پېښه کې لاس لرل رد کړل او لامل يې دولت کې خپل منځي اختلافات وبلل. په افغانستان کي د طالبانو رژيم د عربي متحده اماراتو له خوا په رسميت پيژندل سوی و او د دي ډلي جنگياليو د کندهار په حمله کي لاس لرل هم رد کړي دي.

خو وروسته افغان چارواکو اعلان وکړ چې د دوی څېړنې ښيي چې د کندهار بريد له هېواده بهر طراحی شوی و او پړه يې پر طالبانو واچوله.

افغان ولسمشر هم ويلي، دا ډول پېښې له ترهگرۍ سره "د مبارزې په برخه کې د دواړو هېوادونو د حکومتونو او خلکو عزم او اراده پياوړې کوي.

متحده عربي امارات د افغانستان د بيارغونې په برخه کې يو له تر ټولو لويو مرسته کوونکو هېوادونو دی. بله خوا په زرګونو افغانان هم دغه هېواد کې په بېلابېلو کارونو او سوداګرۍ بوخت دي.

د افغانستان د بهرنيو چارو وزارت د متحده عربي اماراتو چارواکو سره د پېښې د بشپړې څېړنې ژمنه کړې ده.

# بردي محمدوف

## د دريم ځل لپاره د ترکمنستان ولسمشر شو



نعمت الله ظهير

د ترکمنستان د انتخاباتو مرکزي کميسيون د انتخاباتو د نتيجو د اعلان پر وخت وويل چې څه دپاسه ۹۷ فيصدو خلکو په انتخاباتو کې ګډون کړی و چې ددې کميسيون په وينا بردي محمدوف د ګډون کوونکو نژدې ۹۸ فيصده رای ترلاسه کړي دي.

خو د انتخاباتو د کميسيون رئيس قلمراد مرادوف دا ونه ويل چې د يکشنبې د ورځې په انتخاباتو کې نورو اته کانديدانو څومره رای ګټلي دي.

د يکشنبې د انتخاباتو اته نور کانديدان ټول دولتي مامورين ، د دولتي شرکتونو مديران او يا هم د حکومت د وفادارو سياسي ګوندونو مشران وو.

په ۲۰۰٦ کې د ترکمنستان د پخواني جمهور رئيس سفرمراد نيازوف له مړينې وروسته بردي محمدوف نژدې د يوې لسيزې راهيسې د مرکزي آسيا ددې پنځه ميليونه نفوس لرونکي هېواد واکمن دی.

د ترکمنستان اساسي قانون تېر کال ورغول شو او هغه ماده يې له منځه يوړه چې جمهور رئيس له ۷۰ کلنۍ وروسته نشي واکمن کېدای. په دې توګه ښاغلي بردي محمدوف ته ددې زمينه برابره کړای شوه چې د نامعلومه مودې لپاره پر واک پاته شي. د اساسي قانون په دغو تعديلونو کې د جمهوري رياست دوره له پنځو کلونو نه اوه کلونو ته وغزول شوه.

بردي محمدوف ۵۹ کلن دی چې دمخه د غاښونو ډاکټر او د روغيتا وزير و.

ښاغلی بردي محمدوف د يکشنبې په ورځ د رای ورکولو په ترڅ کې وويل چې د ترکمنستان هدف دادی چې د پرمختللو صنعتي هېوادونو په ډله کې ودرېږي. خو فرانس پرس اژانس په وينا د ترکمنستان اقتصادي وده په تېرو څو کلونو کې ډېره ټيټه وه. يو دليل يې د روسيې له خوا د ترکمنستان نه د ګازو د اخيستلو بندول وو چې ددې هېواد د عايد تر ټولو عمده سرچينه ده.

ترکمنستان چې د افغانستان ګاونډی هېواد دی. دا هېواد د اوږدې مودې راهيسې حتی د طالبانو د حکومت پر وخت هم د افغانستان سره ښه اړيکې پاللي دي.



# افغانستان

## د روسانو د ماتې ۲۸ کاله پوره شول

نجیب الله آرین

اوسنی روس یا پخوانی شوروي اتحاد د مجاهدینو له ۹ کلن سخت مقاومت وروسته ۲۸ کاله مخکې په هم دې ورځ خپل پوځونه له افغانستان څخه وایستل.

د سلواغې شپږ ویشتمه په افغانستان کې د مجاهدینو د برې ورځې په نوم او په ټول هیواد کې د یادې ورځې په مناسبت عمومي رخصتي ده.

نن دغه ورځ د ارګ تر څنګ د افغانستان په بېلابېلو ولایتونو کې دپخوانیو جهادي مشرانو او قومندانانو په ګډون د شانداره مراسمو په ترځ کې ولمانځل سول.

شوروي اتحاد پوځونو په ۱۳۵۸ کال د جدې په ۶ نېټه پر افغانستان یرغل وکړ خو د افغانستان د مجاهدینو د سخت مقامت وروسته په ۱۳۶۷ کال له هیواده ووتل.

ځیني افغانان په دې باور دي چې د تېره شو لسیزو د تاوتریخوالي یو لامل هم پر افغانستان د شوروي اتحاد یرغل وو.

د دې یرغل په پایله کې میلیونونه افغانان وژل سول او میلیونونه نور هم مهاجر سوه او هیواد يې پرېښوي.

د دغې جګړې قربانیان اوس هم د عدالت په تمه دي.

یو شمېر سیاسي شنونکي وایي د دغه یارغل وروسته اوس هم روسیه په افغانستان کي د لاسوهني لاس نه اخلي.



په دې وروستیو کي د روسیې د بهر نیوچارو وزیر د خپل افغان سیال سره په یوه ګډه خبري ناسته کي وویل چي دوی به د امریکا سره د افغانستان په تړاوو د سوریې په ډول یوه توافق ته ورسیږي.

افغان شنونکي دا ډول څرګندونو ته په کتو اټکل کوي چي روسیه به دافغانستان په راتلونکي کي جګړه کي فعاله ونډه ولري.

# امریکايي قاضیانو

# د ټرمپ

## د مهاجرت فرمان پر ضد رای ورکړه

**د امریکا د استناف د فدرالي محکمې درې قاضیانو د اوو اکثریت مسلمان میشته هیوادونو د اوسیدونکو د ویزې د ردولو لپاره د دونالدد ټرمپ د اجرایي فرمان په هکله د بیا کتنې وروستی نتیجه اعلان کړه.**

د امریکا د سانفرانسیسکو په ښار کې د استناف د فدرالي محکمې قاضیانو د متحده ایالاتو د جمهور رئیس دونالد ټرمپ له فرمان سره خپل مخالفت څرگند کړ او ویې ویل چې د اوو اکثریت مسلمان میشته هیوادونو ایران ، سوریې ، عراق ، لیبیا ، سوډان ، یمن او سومالیا اوسیدونکي کولای شي د باوري ویزې په درلودلو سره د امریکا متحده ایالاتو ته راشي.

په داسې حال کې چې د سانفرانسیسکو د استناف فدرالي محکمې د دلوی د میاشتې په ۲۱ د پنجشنبې په مازیگر خپله پریکړه اعلان کړه ، ښاغلي ټرمپ سمدستي په خپل ټویټر کې ولیکل چې "په محکمه کې به گورو ، زمونږ د هیواد امنیت په خطر کې دی.

ښاغلي ټرمپ د دلوی د میاشتې په اتمه یو اجرایي فرمان لاس لیک کړ چې له مخې یې د اوو اکثریت مسلمان میشته هیوادونو اوسیدونکو ته په موقتي توگه امریکا ته د راتگ لپاره د هر ډول ویزې ورکول د ۹۰ ورځو لپاره وځنډول.

د واشنگټن ایالت د سیاټل ښار د یوې فدرالي محکمې قاضي ددې فرمان پر ضد پریکړه وکړه او د ویزې بندول یې رد کړل. د ښاغلي ټرمپ د ادارې د شکایت په نتیجه کې د سانفرانسیسکو د استناف محکمې پر موضوع تجدید نظر وکړ.

د استناف محکمې موضوع وپلټله او د پنجشنبې په ورځ یې د خپلې پریکړې په اعلان سره وویل چې د سیاټل د قاضي رای سمه ده. دا پریکړه د ښاغلي ټرمپ د اجرایي فرمان تعلیق په معنی ده.

اوس د ښاغلي ټرمپ اداره کولای شي سترې محکمې ته چې د امریکا د متحده ایالاتو تر ټولو لوړ قضایي مقام دی ، مراجعه وکړي.






ترتیبوونکی : نعمت الله ظهیر

# شیخ عمر عبدالرحمن



## د امریکا په زندان کې روح خپل رب ته وسپارله



شیخ عمرعبدالرحمن په کال ۱۹۳۸ز کې زیږیدلی وه په ۹ میاشتو وه چې دواړو سترګو ړوند شو د ۱۰ کلو و چې قران حکیم یې حفظ کړ او د الازهر پوهنتون څخه دوکتورا په تفسیر کې واخیسته شیخ رحمه ا لله د پوهنتون د فراغت سره سم د وخت مشر جمال عبدالناصر پر ضد مبارزه شروع کړه دې په مصر کې لومړی شخصیت وه چې سیکولریزم یې محکوم کړ، شیخ رحمه ا لله په مصر کې د الجهاد په نوم ګوند جوړ کړ. نوموړی په ۱۹۸۱م کال د مصر د پخواني ولسمشر (انور سادات) په قتل کې د لاسلرنې په تور زنداني شو خو د محکمې لخوا بیرته بري شو.

په ۹۰ لسیزه کې د امریکا له لورې پرې تور پورې شو او ۱۹۹۵ ز کې په عمري بندي شو او بالاخره نن د ۷۹ کلونو په عمر په حق ورسیږ.

# د شيخ صاحب وصيت نامه

## دشيخ صاحب په وصيت کې راغلي:

په محبس کې ترجمان نه راپرېښودل کيږي ، د کتاب قرائت کوونکي ته اجازه نه شته راډيو او ټيپ نه راکول کيږي ، د بهر نړۍ له حاله هيڅ نه خبريږم.. امريکايان به ضرور ما وژني ، نه مې پرېږدي ، څوک څه پوهيږي چې زما په خوراک ، څښاک او پوښاک کې څه شي ګډيږي ؟ ممکن د تدريجي وژنې له اسلوبه کار واخلي ، يا په خوراک او څښاک او دوا کې زهر راکړي ، يا ممکن داسې نشه يي توکي راباندې وخوري چې تر مرګ او ليونتوبه مې ورسوي.

## شيخ عمر عبدالرحمن د خپل وصيت ليک په يوې بلې برخه کې ليکي:

اى ورونو! امريکايان ما وژني ، په دې کې هيڅ شک نه شته ، خو که ويې وژلم نو جنازه مې دلته مه پرېږدئ ، خپل کلي او کور ته مې يوسئ تر څو له تاسو څخه هېر نه شم. له مرګه وروسته تاسو خپل هغه ورور له ياده مه باسئ چې د حقې خبرې په ګناه د الله تعالى په لار کې وژل شوى وي.

د شيخ عمر عبدالرحمن زوى عبدالله عمر وايي چې پلار يې په وروستي ځل دوه اونۍ مخکې د ده له مور سره په تليفوني خبرو کې د خپل روغتيايي حالت په اړه انديښنه څرګنده کړې وه او ويلي و «نه پوهيږم چې بيا به په ژوند کې خبرې وکړو او که نه.

عبدالله عمر زياتوي چې پلار يې امريکا ته په دې داډ تللی و چې ګويا هلته ازادي ده ، خو په وينا يې ، له ورتګ سره سم له داسې تورونو سره مخ شو چې تر مرګه پورې يې هيڅ ثبوت ونه موندل شو.

نو دا ممکنه خبره ده چې شيخ عمر عبدالرحمن صاحب په **شهادت** رسيدلی دی.

په خپلو نيکو دعاګانو کښې يې مه هيره وی.

# ډیورنډ

## د ډ توافق لیک

په داسې حال کې چې دهندوستان په خوا کې دافغانستان دسرحدي سيمې په هکله ځينې مسئلې رامنځ ته شوې ،او په داسې حال کې دواړه اعلحضرت امير او دهندوستان حکومت هيله من دي چې دغه مسئلې د دوستۍ په فهم او ددواړو دنفوذ دساحو دحد په ټاکلو سره حل کړي ،تر څو په آينده کې ددغو متحدو حکومتونو تر منځ ددغې موضوع په سر دنظر اختلاف نه وي ، په دې وسيله په لاندې ډول سره موافقه وشوه.

۱: دوالاحضرت دتوابعو ختيځه او سهيلي سيمه دې له واخان نه دپارس تر پولې پورې دې هغه ليکه تعقيب کړي چې په هغې نقشي باندي ښودل شوې چې له دغه توافق ليک سره مله ده.

۲: دهندوستان حکومت به هيڅ وخت په هغو سيمو کې چې له دغې ليکې نه آخوا دافغانستان په لور پرتې دې مداخله ونه کړي ،او والاحضرت امير به هيڅ وخت په هغو سيمو کې چې له ليکې نه آخوادهندوستان په لور پرتې دې مداخله ونه کړي.

۳: د برتانيې حکومت په دې ډول موافقه کوي چې والاحضرت امير دې اسمار او تر چاناک پورې پورته ساحه وساتي . له بلې خوا والاحضرت موافقه کوي چې دی په هيڅ وخت په سوات ، باجوړ يا په چترال کې دباشګل يا ارنوايي درې په شمول مداخله نه کوي .دبرتانيې حکومت داسې هم موافقه کوي چې والاحضرت دې دبر مل سيمه ولري کومه چې په هغه مفصلې نقشې کې ښودل شوې چې والاحضرت ته لادمخه سپارل شوې ده ،او والاحضرت دپاټې وزيرستان او د داوړپه هکله له خپلې ادعانه تيرېږي ،په همدې ډول والاحضرت دچاغي په باب له خپلې ادعانه اوړي.

۴: دسرحدي سيمې ليکه به دافغان او برتانوي ګډو کمشنرانو لخوا له دې وروسته په تفصيل سره وکاږله شي او حد بندي به شي په کوم ځای کې چې دتطبيق وړ او مطلوب وي . ددغو کمشنرانو مقصد به داوي چې دسرحد په ټاکلو کې متقابل فهم ته سره ورسېږي داسې چې دغه ليکه دې تر نهايي امکان پورې دهغې نقشې له مخه وي چې له دغه توافق ليک سره مل ده ،په داسې حل کې چې د دغې سرحدي سيمې دګانډيوکليو دموجودو محلي حقوقو رعايت پوره وشي.

۵: دچمن دموضوع په ارتباط والاحضرت دبرتانوي نوې قشلې په هکله له خپل اعتراض نه تېرېږي او برتانوي حکومت ته دهغه حقوق پرېږدي چې دسرکې تايلري په اوبوکې يې په خپله په بيه اخيستې و. دسرحدي سيمې له دغه ټکي نه به ليکه په لاندي ډول وکاږل شي.

دغه ليکه به پشا کوتل ته نژدې دخوجه امران غروله لوړې نه چې دبرتانيې په سيمه کې به پاته کيږي ،په هغه لور کښله کيږي چې مرغه چمن او دشربو چينه به افغانستان ته پاتې کيږي اود نوي چمن چاونۍ او دافغان پوستې چې خلک يې

په دې ډول غوښه پوسته به دبرتانيې په علاقه کې او دغوښې په جنوب او لويديځ کې دشوراواک سرک به افغانستان ته پرېږدي . دبرتانيې حکومت به ددغه سړک تر نيم ميلي پورې مداخله نه کوي.

ددغه توافق ليک دغه پورته فقرې دهندوستان دحکومت اودافغانستان دوالاحضرت له خوا دنظر ټول عمده اختلافات چې دسرحدي سيمې په باب ددوی تر منځ پيدا شوي وو ،دپوره او قناعت ښوونکې فيصلې په ډول ګڼل کيږي او دواړه دهندوستان حکومت او والاحضرت په ذمه اخلې چې جزياتوپه باب ټول اختلاف لکه هغه چې له دې وروسته به دهغو منصبدارانو له خوا پرې غور کيږي چې دسرحدي خط دحد بندۍ دپاره ټاکل کيږي ،ددوستۍ په روحيې سره به فيصله کيږي .د دې دپاره چې تر هغو چې ممکنه وي د دواړو حکومتونو تر منځ دشکونواو غلط فهميو سببونه له منځه ولاړ شي.

دهندوستان حکومت چې دبرتانيې حکومت په نسبت دوالاحضرت له روغ نيتۍ نه په پوره ډول ډاډ من شوی او غواړي افغانستان پياوړی او خپلواک ووينې دوالاحضرت لخوادجنګې لوازموپه رانيولواو واردولوباندې به اعتراض ونه کړي ،او دوی به په خپله دغه په هکله ښه مرسته ورسره وکړي .برسېره پردې د دې دپاره چې دوالاحضرت دهغې دوستانه روحيې نښه وساتل شي چې په دغو مذاکراتو کې يې ښودلې دهندوستان حکومت ژمنه کوي چې په هغه دولسو لکو کې شپږ لکه روپۍ زياتې راوستل شي چې والاحضرت ته هر کال دمالې مرستې په ډول ورکول کيږي.

هنري ماتمر ډيورنډدهندوستان دحکومت دباندنيو چارو وزير

امير عبدالرحمن خان دافغانستان او دهغه دتوابعوامير



# NATO ناټو

## زمونږ خوندیتوب زمونږ په یووالي کې دی

د ناټو غړو هیوادونو د (فبرورۍ په ۱۵ او ۱۶) د دفاع وزیرانو په دوه ورځنۍ غونډه کې ددی شمالي اتلانتیک د امنیتي تړون په قوت موندنې موافقه وکړه او ددی سازمان په وړاندې بر امنیتي تهدیدونو یی بحث وکړ.

د ناټو غونډې په اوله ورځ امریکایي مقاماتو له ناټو وغوښتل چې په دفاعي بودیجې کې خپله ونډه زیاته کړي.

د امریکا د دفاع وزیر جېم متېس وویل هېواد یې ناټو ته د یوه مهم شریک په سترګه ګوري ، خو له ناټو سره به د همکاریو په برخه کې واړه بدلونونه رامنځته شي.

په ورته وخت کې د کاناډا او ترکیې دفاعي چارواکو وویل د ناټو د غړو هېوادونو یو شمیر وزیران باید مخامخ له امریکایي پلاوي سره په منځني ختیځ او شمالي افریقا کې د ګواښونو په اړه بحث وکړي.

د امریکا د دفاع وزیر پدې ټینګار لري چې وګوري متحدین یې د داعش ډلې په ځپلو کې څنګه همکاري کولې شي. او د بریتانیې د دفاع وزیر مایکل فالون وویل دا د وخت مخکې نه ده چې د ثبات او د پوځي دخالت وروسته پر بیاپخلاینې خبرې پیل شي.

که څه هم د امریکا جمهور رئیس ، دونالډ ترمپ پدې وروستیو کې ناټو له کاره لویدلی سازمان بللی و ، خو اوس یې د دفاع وزیر ناټو سره د امریکا د دوامدارو همکاریو ډاډ څرګند کړی دی.
ددی سازمان یو شمیر غړو د ځوملیتي ځانګړي ځواک پر قوماندانۍ جوړیدو هم موافقه وکړه.

د ناټو درې غړو د یو نوي تفاهم له مخې په خپل منځي دفاعي همکارۍ او ځانګړي عملیاتي ځواک د یوې قوماندانۍ پر ایجاد هم موافقه وکړه. دا درې هیوادونه ، بلجیم ، ډنمارک او هالنډ دي. د درې واړو د دفاع وزیرانو د پنجشنبې (فبروري ۱۶) موافقه لاسلیک کړه او وی ویل دوئ غواړي پدې نوي عملیاتي ځواک قوماندانۍ جوړیدو په ۲۰۱۹ کال کې کار پیل کړي.

د انټرنتي بریدونو د مخ پر زیاتیدونکو تهدیدونو په برخه کې ، ناټو فیصله وکړه چې د غړو هیوادونو ترمنځ قوي همکاري اوهمغږي د سایبري حملو د تهدید په مقابل کې اغیزمن نقش لرلی شي. د پنجشنبې په ورځ د ناټو سازمان او فنلنډ داسی یو قرارداد وکړ چې سایبري دفاعي همکاریو په برخه کې یو سیاسي کاري چوکاټ رامنځ ته کړي ترڅو د ناټو او فنلنډ هیواد د خپلو انټرنتي شبکو فعالیت پراخ او په ښه ډول خوندي وساتي.

ناټو د ۲۰۱۷ کال په دی لمړنۍ دوه ورځنۍ غونډه کې یو بل اقدام هم وکړ. ناټو غواړي لدې وروسته ددی سازمان د منځني پرواز الوتکو لپاره په فضا کې د تیلو د اړتیا پوره کیدو سیستم یا قابلیت رامنځ ته کړي. ددی هدف لپاره د ناټو درې غړو هیوادونو ، بلجیم ، جرمني او ناروې موافقه وکړه چې د دغه اروپایي پروګرام سره یوځای شي.

د ناټو د ۲۰۱۷ کال په اجنډا کې د ستراتیژیکو هدفو لپاره طرحې جوړول هم شامل دي. ناټو غواړي د خپل قلمرو په جنوبي برخه کې د سوریې ، عراق او داعش لپاره په یو چوکاټ کې کاري تګلاره ولري او د ترکیې سره کمک وکړي چې په توره بحیره کې د ناټو نقش لوبوي. ترڅنګ یي په منځني ختیځ او شمالي افریقا کې خپل دفاعي قابلیت لوړ کړي. او په ختیځ قلمرو کې غواړي خپل متحدین د روسیې د ګواښونواو تهدیدونو په مقابل کې په خپلې همکارۍ ډاډه کړي.

په سیاسي چارو کې د ناټو کمیټه به د اروپایي اتحاد سره په په اړیکو جوړولو کار وکړي ، د ګرجستان او اوکراین سره به روابط وغزوي ، د مسدونیا ، بوسنیا اوهرزګویونیا ته سیاسي فعالیت پراخ کړي. او د نهایي تصمیمونو په هدف به غواړي خپل منځي استخباراتي معلومات شریک کړي.

د ناټو نظامي کمیټه به په لوړه کچه د تیارسۍ په حالت کې د عملي اقدام د ځانګړي ځواک لپاره پلانونه ترتیب کړي ترڅو په نورو ځایونو کې ګټور پراخ حضور پیدا کړي ، د دفاعي چارو په مختلفو برخو کې پانګونه او لګښت وشي ، د ۲۰۱۷ کال او تر هغې وروسته د ناټو د پوځي تمرینونو او روزنې لړۍ دوام پیدا کړي ، په افغانستان کې د ناټو د قاطع ملاتړ ماموریت تقویه کړي او د ناټو د قوماندانۍ په ترکیب یوه فعاله ارزونه وکړي.

د اتومي پلان جوړولو ډله یي په اروپا کې د تخنیکي اتومي وسلو په راتلونکې غور وکړي ، په معاصر وخت کې اتومي تهدیدونه مشخص کړي ، او اتومي روزنه او پوهه زیاته کړي.












# زده کړه

# مو د کار مخه نه نیسي

**شمس الدین شمس**

### له ډېرو زده کړیالانو چې وپوښتي څه کار کوي؟

پرته له څنډ شخه به درته ووايي زده کړيال يم اوزده کړي کوم ، سمه‌ده چې زده کړي کوي ، څوک چي زده کړې کوي د هغوی لپاره کار ډير ضروري دی ځکه هغوی به‌د خپلو زده کړو لګښت له کومې لارې برابر وي.د يو شمير زدهکړيالانو لپاره زده کړي د لتې او بيکارۍ يوه بهانه ګرځيدلې ده همدا وهجه ده چي ډير ځوانان مو له تعليم څخه په دې غولوونکې بهانه لري پاتې دي چې ګواکې اقتصادي لري خو بايد په پوره ډاډ سره وايوو چې زده کړه هيڅکله ستاسي د کارکولو مخه نه شي نيولی بلکي بر عکس ستاسي حوصلې لوړوي زه له خپله ليده دا ويلاي شم هغه زده کړيالان کوم چې کار کوي او دخپلو زده کړو لګښت په خپلو متو برابروي په ټولګي کې له هغو زده کړيالانو ډير ښه وي کوم چې شتمن وي او د زده کړي لګښت يي کورنۍ ورته برابروي لامل يي دادی هغه زده کړيالان چې کار نه کوي او لګښت يې کورنۍ پرې کوي زده کړې ته د ساعت تيرۍ او يو ډول تفريحی مصروفيت له ليده ګوري.

خو برعکس هغه زده کړیالان چې د زده کړې سره سره کار هم کوي زده کړه ورته د یوه ضرورت په څېر ښکاري او زده کړه د خپلو ټولو ستونزو څخه د وتلو لار ګڼي.

نو راځئ که مو کورنۍ ددې توان نه لري چي ستاسې د زده کړي لګښت دې درکړي په خپله لاس په کار شئ او ځانونو ته مو د زده کړې زمینه برابره کړئ.

که له اوسه مو ځان په نورو پیټې (بار) کړ تر پایه به له دې ستونزو کړیږئ.

همدا مو دستونزو سره دمباریزې لمړنی پړاو دی که چیرې په دې پړاو کې بریالي شوئ نو د ژوند په ټولو کې به بریالي او هسک سر یاست.

# هند

## فضا ته د سپوږمکیو استولو ریکارډ مات کړ



هند فضا ته په یوه توغندي کې د ۱۰۴ مصنوعي سپوږمکیو په استولو سره د روسیې هغه ریکارډ مات کړی ، چې په ۲۰۱۴ کال یې ۳۷ مصنوعي سپوږمکۍ فضا ته استولې وې.

دغه ډېری مصنوعي سپوږمکۍ- له درېیو پرته نورې ټولې په بهرنیو هېوادونو ، په تېره بیا امریکا کې جوړې شوې وې.

دا توغندی د هند جنوب کې له سریهاریکوتا فضایي اډې څخه وتوغول شو.

څارونکي وایي ، داسې دلایل شته چې هند په فضایي بازار کې- چې قیمت یې میلیاردونه ډالر اټکل شوی ، د یوه مهم لوبغاړي په توګه ځان راڅرګندول غواړي.

فرانس پرېس خبري اژانس د دغو مصنوعي سپوږمکیو توغولو د پروژې د مشر بي جي کومار له خولې ویلي "دا زموږ هر یوه او ټولو ته یوه مهمه شېبه ده. نن موږ تاریخ جوړوو.

د هند لومړي وزیر نریندرا مودي پر ټویټر لیکلي: "د هند د فضایي څېړنو د سازمان دا مهمه راسته راوړنه زموږ د سایسني فضایي ټولنې او ولس لپاره د ویاړ یوه بله شېبه ده. هند پوهانو ته سلام.

له ټول ټال ۱۰۴ مصنوعي سپوږمکیو څخه یې ۹۶ په امریکا کې جوړې شوې ، نورې په اسرائیلو ، قزاقستان ، متحده عربي اماراتو ، سویس او هالنډ کې د نورو بهرنیو سرچینو له خوا جوړ شوي.

د امریکا "پلنېټ" شرکت له خوا ډېری دغه سپوږمکۍ د ځمکې نځور اخیستی شي.

باور کېږي چې د هند یوه مصنوعي سپوږمکۍ په لوړه کچه د ځمکې شفاف انځورونه اخیستی شي.

هند په ۲۰۰۹ کال کې فضا ته مصنوعي سپوږمکۍ واستوله ، خو ډېر ژر یې له ځمکې سره اړیکې پرې شوې او په بل کال کې هم د هند سپوږمکۍ له توغولو وروسته وچاودېده.



په نوي ډېلي کې د بي بي سي خبریال سنجې مجومدار وایي ، د هند دغه فضایي لاسته راوړنه د هند پرمختګونو کې یو بل بریالی ویاړمن کار دی.

سږ کال هند د فضایي پروګرام لپاره بودیجه ډېره کړه ، چې زهرې سیارې ته هم د یوه ماموریت استولو هوډ لري.

# شمالي کوريا



## د شمالي کوريا مشر کیم جونګ ایل ناسکه

## ورور مالیزيا کې وژل شوی

د سويلي کوريا سرچينو ويلي کيم جونګ نام ته په هوايي ډګر کې دوو ښځو زهر ورکړي.

کيم جونګ نام ۴۵ کلن و او نوموړی د ماليزيا پلازمېنې هوايي ډګر کې په نښه شوی دی.

کيم نام د شمالي کوريا پخواني مشر کيم جونګ ال مشر زوی و. د ماليزيا پوليسو رويټرز خبري اژانس ته تاييد کړې ، چې له هوايي ډګره روغتون ته پر لاره مړ شوی کس کيم جونګ نام و.

د ماليزيا لومړي وزير دفتر ويلي ، د کيم جونګ نام مړی عدلي طب څانګې ته و استول شو.

د سويلي کوريا سرچينو ويلي کيم جونګ نام ته په هوايي ډګر کې دوو ښځو زهر ورکړي ، خو دغه ښځې هم ونيول شوه. او پلټنې اوس مهال رواني دي د کيم کورنۍ يوې نژدې سرچينې بي بي سي ته ويلي ، چې کيم نام د زهرو له کبله وژل شوی دی.

نوموړی ۲۰۰۱ کال کې جعلي پاسپورټ سره جاپان ته د ننوتو پر مهال نيول شوی و.

نوموړي جاپاني پوليسو ته هغه مهال ويلي و، چې غوښتل يې د توکيو ډيزني لنډ وويني.

ويل کېږي له هغه وروسته نوموړی د پلار له پامه وغورځيدل. ۲۰۱۱ کال کې د پلار له مړينې وروسته، چې کشر ورور يې وا کمن شو، د نوموړی ډېر وخت په مکاو، چين او سنګاپور کې تېرېده.

کال کې جاپاني رسنيو د نوموړي له خولې داسې رپوټونه هم خپاره کړل، چې ګواکې هغه د وراثت واکمنۍ پلوي نه دی.



# جنت

## د لس (10) ډوله خلکو لپاره انتظار کوي

۱: هغه کس ، چې د شپې پاڅېږي او دوه رکعته تهجد لمونځ وکړي.

۲: هغه کس ، چې په ګرمۍ کې روژه نیسي.

۳: هغه کس ، چې له امام سره په اول تکبیر کې ځان شریکوي.

۴: هغه کس ، چې د الله تعالی د عبادت کولو له امله لږ ویده کیږي.

۵: هغه کس ، چې همېشه ریښتیا خبرې کوي.

۶: هغه کس ، چې دینوی علم زده کوی او نورو ته رسوی.

۷: هغه کس ، چې همېشه په اودس کې ګرځي.

۸: هغه کس ، چې هر وخت په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې درود وایې.

۹: هغه کس ، چې له خپلې کورنۍ سره په شفقت اوخوشحالۍ سره ژوند تېروي.

۱۰: هغه کس ، چې وږي ته ډوډۍ ، تږي ته اوبه او بربنډ ته کالی ورکوي.





# اووه ۷

## ډوله ښځې د نکاح وړ نه دي!

امام غزالي رحمه الله په خپل کتاب احياء علوم الدين کي رانقلوي چي د دغو صفاتو لرونکو ښځو سره واده مه کوئ؛ که څه هم هغوی په حسن، جمال او شتمني کي بې ساري وي؛ ځکه له دغسي ښځو سره نکاح کول د ټول عمر د افسوس او ارمان سبب ګرځي. هغه ۷ ډوله ښځي دا دي:

۱انانه ۲- منانه ۳- کنانه ۴- حنانه ۵- حداقه ۶- براقه ۷- شداقه



۱: انانه: هغه ښځه ده، چي تل یې سر تړلی وي؛ يعني هر وخت شکايت کوي او دا یې عادت ګرځېدلی وي.

۲: منانه: هغه ښځه ده، چي هر وخت پر خپل خاوند احسان اچوي؛ چي ما خو ستا سره دغه احسان کړی دی او ستا له خوا ما ته هيڅ هم نه دي راکول شوي.

۳: کنانه: هغه ښځه ده، چي همېشه د تېر وخت شيان يادوي؛ چي په فلاني وخت کي زما سره دغه شيان او هغه شيان وو، خو اوس نشته.

۴: حنانه: هغه ښځه ده، چي هر وخت خپل پخوانی خاوند يادوي او وايي: هغه عجيبه ښه سړی و، خو ته هغسي نه یې.

۵: حداقه: هغه ښځه ده، چي همېشه خاوند ته فرمايشونه ورکوي؛ هر شی چي ويني، د هغه غوښتنه کوي.

۶: براقه: هغه ښځه ده، چي همېشه په خپل ځان جوړولو مصروفه وي؛ فېشن یې عادت ګرځېدلی وي او نور ضروري کارونه ځيني پاته وي.

۷: شداقه: هغه ښځه ده، چي تېزه ژبه لري؛ هر وخت خبري جوړوي او خبري بيانول یې کار وي.

# د مالداره سړي زګندن



قاري ناصري

د یو مالداره سړي زنکدن وو ، خپل زوی یې راوغوښت او ورته یې وصیت وکړ چې ، زما له مرګ څخه وروسته به زما زړې جورابې ضرور زما په پښو کوې ، په ډېر ټینګار سره یې وویل:

له مرګ څخه ورسته مې باید ضرور دغه جورابې په پښو وي.

کله چې مالداره سړی وفات شوو ، مړی یې د پرېمینځلو لپاره په تخته کیښود او غسل یې ورکړ ؛ نو زوی یې د خپل پلار وصیت خلکو او د کلي ملا ته بیان کړ ، د کلي ملا یې له وصیت پوره کولو څخه انکار وکړ او په کلکه یې منع وکړه او ویې ویل چې ، د دیني احکامو پر اساس هیڅ مړي ته له کفن پرته بل څه نه وراغوستل کیږي!

خو د مړي زوی په دې ټینګار کوه چې ، د پلار وصیت یې باید پر ځای شي! په پایله کې خبره دومره لویه شوه چې ، د مسلې د حل لپاره د ښار ټول علماء راغونډ شول خو موضوع د حل پرځای شخړې او مناقشې ته ولاړه...

بحث او مناقشه روانه وه چې ، یو ناڅاپه مجلس ته یو سړی راغی ، په لاس کې یې یوه ټوټه کاغذ وو چې ، د یاد مړي له لوري خپل زوی ته لیکل شوی وو ، کله یې چې زوی لیک پرانیست ؛ نو ګوري چې کاغذ کې یې د پلار لیکلی وصیت دی ، په لوړ آواز یې ولوست:

ګرانه زویه!

ګورې چې د شتمنۍ ، باغ ، ځمکې ، ښکلي کور ، ښایسته موټر ، کارخانې او ددې ټولو امکاناتو لرلو سره ، سره بیا هم اجازه نشته چې یو جوړ زړې جورابې له ځان سره ویسم.

زما په څیر به یوه ورځ ته هم مرګ ته لبیک وایې! مرګ به دې دروازې ته راځي ، هوښیار اوسه ، تاته به هم له یو کفن څخه پرته ، له ځانه سره د نور څه وړلو اجازه نه وي ؛ نو زیار وباسه تر څو له دغې شتمنۍ څخه چې ، تاته یې پرېږدم ګټه پورته کړې او په سمه لاره یې مصرف کړې ، د مظلومو او ناچاره خلکو سره مرسته وکړې ، مسکین او فقیر ته لاس ورکړې ، صدقې او خیراتونه وکړې ، په ګاونډ کې څوک درنه وږی او لوڅ پاتې نشي ، تل داسې کارونه وکړې چې ، نورو ته یې ګټه ورسیږي او د الله "ج" د رضا سبب وګرځي.

**ځکه ؛** *یواځینی شی چې ، له تا سره به قبر ته ځي ، هغه ستا عملونه دي ؛ نو ډیر هوښیار اوسه ، تر څو خپل راتلونکی د تیارو کور سم وران او روښانه کړې.*

# روغتیایي برخه

Shalimar Mixing Point

# زعفران

## د هر مرض دوا

امرالله کامه وال

زعفران د اقتصادي ارزښت له مخې په نړۍ کې د لوړ قیمت لرونکو کرنیزو محصولاتو له ډلې شمېرل کېږي چې ؛ د نورو محصولاتو په شان په کیلو ګرام او ټنونو نه پلورل کېږی ، بلکېپه ګرام او مثقال یې پېر او پلور کېږي.

زعفران په غالب ګومان د مدیترانې شرقي سیمې نباتاتوله ډلې شمېرل کېږي چې له دې ځایه یې کرکیله افغانستان کې هم رواج پیدا کړی ، خو د ترویج او پراختیا لپاره یې لومړنۍ هڅې ۳۰ کاله وړاندې پیل شوې ، خو بدبختانه د کورنیو جګړو پرمهال نیمګړې پاتې شوه.

اوس مهال د یو کیلو زعفرانو بیه په نړیوالو بازارونو کې څلورو او دولسو زرو ډالرو ترمنځ ده. په لرغوني او اوسني وخت کې دزعفرانو اکثریت مقدار د غذاګانو او مشروباتو د خوند ، رنګ او بوی په ښه کولو کې اوهمدارنګه د ماشومانو لپاره په خوراکي توکو جوړولو کې ترې استفاده کېږي.

د زعفرانو په اړه تحقیقات ښیي ، چې د مختلفو ویټامینونو او د بدن ضرورت وړ مختلف عناصر ، منرالونه او شحمي موادو لري او په درملنه کې یې اغېز مثبت دی.

د زعفرانو په استعمال سره عصبي، هضمي او تنفسي سیستمونه د ځینو ناروغیو لکه د اعصابو ضعف ، خستګي ، درد ،بې خوبي ، کم خوراکي اوتنفسي بې نظمي ورسره حلېږي. همدارنګه د پښتورګو او مثانې تېږې ، د سرخکا نو ، تبې ، زیړي ، د زړه د لویوالي ، د توري لویوالي ، شکر او پوستکی ژیر زخم ، د سترګو خارښت ، د کلمو درد او همداډول خوني اسهال ، عضلاتي دردونه او سرطان ناروغیو لپاره په درملو کې ترې استفاده کېږي.

د لیدو او اورېدو قوت هم ډېروي او هغوی چې د زړه له رنځه ځوریږي د زعفرانو د استعمال توصیه ورته کېږي.

برخه د زعفرانو د حاصل ټولو وخت کې باید هڅه وشي څو میده نه شي ، که چیرې میده شي نو خپل لوړ ارزښت له لاسه ورکوي.

د یو کیلو وچ زعفران دلاسته راوړلو لپاره /۱۵۰۰۰۰تازه ګلانو ته ضرورت دی او ددې شمېر پوره کولو تکلیف یوازې بزګر ته معلوم دی.

# هغه کسان چې يو پښتورګې
# نورو ته ورکوي د لوړ فشار له
# خطر سره مخ دي

ژباړه: ډاکټر دوران فيضان



د يوې څېړنې پر بنسټ، هغه کسان چې يو پښتورګې يې ويستل شوی وي، څو کاله وروسته د لوړ فشار په ناروغۍ اخته کېږي. دا څېړنې څرګندوي چې د پښتورګي بسپنه او يا په کوم بل علت د يو پښتورګي ويستل دفشار د لړ خو دپام وړ او دوامداره لوړوالي لامل ګرځي. سره له دې څېړونکي وايي چې د دې پايلو د تصديق لپاره لا زياتو څېړنو ته اړتيا ده. دوی زياتوي چې په 48 څېړنوکې چې د پښتورګي پر بسپنه ورکونکو تر سره شوي دي، د څېړنو له او دوينې فشار د ارزونې جلا جلا لارې چارې کارول شوي دي او پدې هکله چې آيا د پښتورګي بسپنه ورکول په راتلونکې کې د وينې فشار د لوړېدو لامل ګرځي او که نه، بېلا بېلې پايلې لاسته راغلې.
اوس مهال په امريکا کې نژدې 67000 ناروغان چې پښتورګو يې له کاره لوېدلي دي، د پښتورګيو بسپنې او پيوند ته په تمه دي تر څو يې ژوند وژغورل شي.
په 2005 کال کې په امريکا کې يواځې 16477 د پښتورګي د پيوند عملياتونه ترسره شوي دي چې له دې ډلې څخه يواځې 6896 عملياتونو کې د ژونديو بسپنه ورکونکو پښتورګي کارول شوي دي. په ټوله نړۍ کې نژدې اتيا زره کسانو خپل پښتورګې په بسپنه ورکړي. Dr. James F. Childress. وايي چې ددې بسپنه ورکوونکو په منظم ډول څارنې د نه شتون له امله په دوی کې د اوږدې مودې د خطرونو ارزونه نه شونی کار دی.

چلډرس په مشرۍ د غړيو بسپنه ورکولو په هکله يوه کميټې دنده اخيستې تر څو د غړيو ته د اړو ناروغانو لپاره د مړو شويو کسانو څخه د غړيو داخيستلو لارې چارې وپلټي. دوی څرګندوي چې بايد د ژونديو وګړو څخه د غړيو اخيستلو رواج، په دقت سره و ارزول شي.

چلډرس وايي: موږ د غړيو د ژونديو بسپنه ورکونکو په هکله اوږدمهاله مالومات په لاس کې نلرو او نه پوهېږو چې د غړيو ورکولو د هغوی پر ژوند څه اغېزې کړي او دوی له کوم ډول خطرونو سره لاس او ګريوان دي؟ موږ نه پوهېږو چې د غړيو د ورکړې وروسته هغوی ته څه پېښ شوي، نو موږ څنګه کولای شو چې نورو بسپنه ورکونکو لپاره چې حاضر دي خپل غړي اړو ناروغانو ته ورکړي، د هغه خطرونو په هکله چې ښايي دوی ورسره مخ وي مالومات ورکړو؟

## د وينې د فشار لوړوالی:

د نويو مالوماتو پر اساس چې په دې وروستيو کې خپاره شوي دي ويل کېږي چې څېړونکو ټولې 48 پخوانې څېړنې چې په هغوی کې د 28 هېوادونو نه ټول 5145 دپښتورګيو بسپنه ورکوونکي تر څېړنې لاندې نيول شوي وو، له سره تر مطالعې لاندې ونيولې. د پښتورګي د بسپنه ورکولو په وخت کې ددې وګړو منځنې عمر 41 کاله وو.



د پښتورګي د ویستلو نه مخکې ددوی سیستولیک فشار په 121اوسط و77 mm Hgاو ډیاسټولیک فشار په اوسط ډول mm Hgډول ځخه 80کښته سیستوریک فشاراو mm Hgښايي ووایو چې د 120 ځخه کښته ډیاسټولیک فشار نورمال ګڼل کیږي اود وینې mm Hg فشار هغه وخت لوړ ګڼل کېږي چې سیستولیک فشار د140 ځخه او یا ډیاسټولیک فشار د90 ځخه لوړ شي.






څېړونکو وموندله چې په د پښتورګو په هغه بسپنه ورکونکو کې چې لږ تر لږه تر پنځو کالو پورې تعقیب شوي او څېړنې لاندې نیول شوي وو ، سیستولیک او ډیاسټولیک فشار دواړه د دوی د عمر لپاره د نورمال فشار 5mm Hgځخه نژدې لوړ وه.

ډاکټر نیل بووډویل او ملګري یې وایي: ددی خبرې پخلی چې د پښتورګي د بسپنې څېړنو ته اړتیا لري. دا ځکه چې د لوړ فشار په نورو ناروغانو کې له نژدې ځخه د دوې ورکونې له کبله منځته راتلونکې لوړ فشار هم دغه راز پایلې لري او که نه ، لا زیاتو څېړنو ته اړتیا لري. دا ځکه چې د لوړ فشار په نورو ناروغانو کې له نژدې ځخه د دوې مراقبت او لازمه درملنه په مرګونو پایلو کې کمښت راوړي.

نوموړي څېړونکې زیاتوي چې ښه به وي چې ټول د پښتورګي بسپنه ورکوونکي ، د پښتورګي له ورکړې ځخه د دوی د روغتیایي حالت له پام کې نیولو پرته ، د پښتورګي له ورکړې وروسته د مراقبت لاندې ونیول شي ترڅو له نورو خطري فکټورنو ځخه لرې وساتل شي او همدارنګه د فشار له لوړوالي او په راتلونکې کې د قلبي ناروغیو مخنیوی وشي.




له مشرانو په مو اوریدلي وي چې بادام د ذهن پیاوړتیا ته ښه دي، دا خبره یې پخه ده، بادام نه یوازې د مغز حجرو ته ښه دي بلکې ډیرې نورې روغتیایي گټې هم لري

طبیعي او داسې بادام چې مالگه ورسره نه وي گډه شوي ډیر غوره غذایي مواد دي چې گټې روغتیایي گټې لري. بادام له مینرالونو ډک دي او د ونو څخه په ترلاسه کیدونکو وچو میوو کې تر ټولو غوره وچه میوه بلل کیږي.

د ورځې یو موټی بادام ستاسو د زړه سلامتي یقیني کوي ، د زیات وزن اخیستو مخه نیسي ، او د شکرې او الزایمر په څیر د مزمنو ناروغیو څخه مو ساتي.

د ورځې د څو دانو بادامو خوړل ستاسو په ورځني غذایي ریژیم کې ځینې حیاتي مغذي مواد ورزیاتولی شي. بادام د ویټامین E ، کلسیم ، مگنیزم او پوتاشیم له پلوه بډای دي. پر دې سربیره بادام د پام وړ پروتین او فایبر هم لري او په طبیعي توگه یې خواږه کمه ده.

په ۲۰ دانې بادامو کې له ۱۲۰- ۱۳۰ پورې کالوري ده. سره له دې چې ډیره دا کالوري له غوړو څخه ده خو دا لومړی درجه صحي غیرې مشبوع غوړي دي او غیرې صحي نه دي.

بادام د زړه د سلامتی لپاره بهترین خواړه دي.

د بادامو په خوړولو ستاسو د زړه د ناروغیو خطر کمیږي. په بادامو کې غذایي مواد د زړه د سلامتی سره مرسته کوي.

بادام په زیاته اندازه مگنیزم لري چې د زړه د حملو او وینې د فشار په کنټرول کې مهم رول لري.



څو څیړنو ښودلې چې بادام د ښه کلسترولو په تولید او د بدو کلسترولو په کمولو کې مهم رول لوبوي. کلسترول د زړه د حملو او وینې د فشار مهم سبب دی.

که وزن مو زیات وي بادام د وزن په کمولو او د سالم وزن په ساتلو کې مرسته کوي.

په بادامو کې شته فایبر ، پروتین او صحي غوړ ددې سبب کیږي چې د یو موټي بادامو په خوړولو د مړښت احساس وکړئ او د ډیرخوری مخه نیسي. بادامو کې شته مگنیزم ستاسو د وینې شکر منظم کوي چې دا کار په خورو پسې زړه سولیدل کموي.

بادام همدارنگه په وجود کې د کالوري د جذبیدو مخه نیسي چې له دې سره د اضافي وزن د کمولو لپاره غوره ناشته ده. دا چې بادام ډیره کالوري لري دا مهمه ده چې په اندازه وخوړل شي. د تغذیې متخصصان د ورځې د یو موټې بادامو د خوړولو سپارښتنه کوي.

بادام د هاضمې سیستم په روغ ساتلو کې مرسته کوي او ان د شکر ناروغۍ پر ضد مبارزه کې هم مرستندویه خواړه دي. په بادام کې شته فایبر د هاضمې سیستم سره مرسته کوي چې خواړه په ښه توگه هضم او پروسس کړي.

# هغه خلک چې په سرویښتان

# نلري هوښیار وي



جالب

هغه خلك چي په سر وېښته نه لري دهغو په پرتله چي وېښتان لري ډيرځيرک او هوښياروي ،هغوی په ځان باور ترنورو ډيرلري اوداستقامت ښتنان وي ،خوپکان ځينې استثنا دي هغوی ډيرکمزوري وي.

دپنسلوانياپوهنتون څيړونکي په هغو خلکو څيړنه کړې چي په سرويښتان نلري يعني دوخت په تيريدوسره توی شوې وي ،نه داسي چي دکومو دانو يامرض له امله يې په سرويښتان نه وي ،بلکي دوخت په تيريدو اوکارکولوسره له سره په پرلپسې ډول تويږي.

څيړنونکي وايي چي دا ډول خلک ډير جذاب ،هوښيار اوپه خپل کاروبار کې ډيرمخکښ وي ،هغوی وايي چي دوی ديوې ځېړنې له مخې معلومه کړې چي هرسرخخه ويښته نه تويږي بلکي له ډير جالب اوجاذب کس له سره ويښتان تويږي چي هغوی په تعليمي اوورځني کارونو ترنورو ځالاکه ،ځيرک اواستقامتي وي.

هغوی وايي چي سرخريل هم دپرېښودلو ډير توپيرلري ،کله چي تاسو سر وخريي نو تربيرته راشنه کيدولو تاسو ډيرجالب اوهڅاند ياست ،خوښي موهم په برخه وي.

دهمدې څيړنې درپوټ جورنکي البرټ اي منيس ليکلي چي نور دې خلک دخپلو وېښتانو تويدلو اندېښنه نه کوي ،هغه يوه خوشبختي ښي اوهيڅ ډول نه راکرځيدونکې ده ،خوډيرو بيا په هيڅ ډول ويښتان نه تويږي ،نودا خصوصيات دي کومه ناروغي نه ده اونه هم دشامپواونورو عواملو اندېښنه کول دي.

څيړونکی وايي چي سر نه ويښته لرونکي دنورو په پرتله عجيب اوغريب وي دوی ډيرهنري وي اوډيرڅه زده کوولای شي اوياپې زده وي.

البرټ ليکي چي دا ډول کسان چي له سر يې وښتان تللي وي هغوی په تجارتي کارونو کې هم ترنورو ډيرپه لوړه سطحه بريالي وي اوکه وغواړي نوکولای شي چي په لوړ کچه تجارت وکړي ،څيړونکی زياتوي چي تاسو داګومان مه ترې کوی چي موږ به هغوی خطا کړو بلکې تاسو به خطاکولای شي اويا به تاسو ته ښه قناعت درکولای شي ،خودخطاکيدولو ګمان وربانديې مه کوئ ،بلکي داخلک دستائيلو وړ دي.

ياده دې وي چي روان شناسان او علم قيافه والا هم ورته خلک هوښيار ګڼي ،خوکه موقع ورته حاصله وي.

# تېکنالوجي

ويښ ولس

## سافټوير او غلا يې

سيدعبدالله ولي زی

په دې ليکنه کې تاسې ته سافټوير او د هغې ډولونه درپېژندل کېږي. دا چې سافټوير څه دی او د کمپيوټر اړيکو په راشه درشه کې سافټوير رول څه وي او کوم ډول سافټويرونه اوس زموږ په ټولنه کې ډېر کارول کېږي دا به په دې ليکنه تاسې ته وړاندې شي. د سافټوير په لايسنس به هم رڼا واچول شي او د سافټوير د کارولو اغيزې به زموږ په ټيکنالوجيک چاپيريال کې هم راوسپړل شي.

### سافټوير:

د کمپيوټر سيستم د بېلابېلو فزيکي پرزه جاتو جوړ دی ، چې د ځينو مخکې ورکړل شويو هداياتو (لارښوونو) په اساس دا پرزې له يو بل سره مالومات شريکوي او په دې توګه د کمپيوټر عمومي سيستم جوړوي. د کمپيوټر په نړۍ کې له کوچنې ډيجيټل ماشين څخه نيولې بيا تر لويو ماشينونو پورې ټول د همدغه هداياتو په اساس کار ترسره کوي. دغه هدايات د يوه

**د يوه ډيجيټل ماشين د چالانېدو وروسته خپله دنده پيلوي او هره پرزه د همدې هداياتو په بنسټ خپل کارونه مخ ته وړي. همدا هدايات د کمپيوټر پروګرامونه دي. چې بېلابېلې ډولې لري. ځينې يې د ډيجيټل سيستم اساسي پروګرامونه دي او د ماشين له چالانېدو تر بيا ګولېدو ټول کارونه ترسره کوي، خو ځينې نور يې بيا يوازې د يوه مشخص کار د ترسره کولو لپاره جوړ شوي دي. همدې پروګرامونه ته سافټوير وايي.**



# تويټر ۱۶۷

## تاوان ميليونو ډالرو ته رسېدلې

ټولنيزې شبکې ټويټر اعلان کړی ، چې د تېر کال وروستيو دريو مياشتو کې يې کاروباري زيان دوه برابره شوی دی.

داسې اندېښنه څرګنديږي ، چې د ټويټر له دغه اعلانه وروسته به يې د ونډو بيې په چټکۍ سره ټيټې شي.

د دغې شبکې مسوولين وايي د ۲۰۱۶ کال وروستيو دريو مياشتو کې يې د تاوان کچه ۱۶۷ ميليونو ډالرو ته ورسېده او د ۲۰۱۵ کال همدومره موده کې يې تاوان ۹۰ ميليونه ډالره وو.
د ټويټر کاروونکو شمېر پروسږ کال څلور سلنه ډېر شو او اوس دغه شمېر ۳۱۹ ميليونو ته رسېږي ، خو له اعلانونو تر لاسه شوی عايد هغومره نه و ، چې تمه يې کېده.

د تېر کال وروستيو دريو مياشتو کې که څه هم د ورم کال وروستيو دريو مياشتو پرتله د ټويټر عايد يو په سلو کې ډېر شو او له ۷۱۰ ميليونو ۷۱۷ ميليونو ته پورته شو ، خو د ماهرينو تمه له دې ډېره وه.

دا د دريو مياشتو په مودې کې تر ټولو لږ ډېرښت و. ځينو داسې فکر کاوه ، چې د امريکا ولسمشر ډونلډ ټرمپ پرلپسې ټويټر استعمالوي او دې سره به د دغې ټولنيزې شبکې عايد هم ډېر شي ، خو د ټويټر عملياتي مشر انتوني نوټو له دغه فکر سره موافق نه دی.

هغه وايي رښتيا چې د ولسمشر ټرمپ د ټويټر زور ښکاره کړ ، خو له يوه شخص يا پيښې سره ډېر لوی بدلون راتګ ګرانه چاره ده.

خو هلته د ټويټر اجرايي مشر جيک ډورسي ويلي ، ۲۰۱۶ کال د ټويټر لپاره د بدلون کال و. هغه وايي ، ټولې چارې سم لور ته ځي او ژر به يې ښې پايلې څرګندې شي.

# د انټرنیټ



## په مرسته څه څه کولی شئ

## جال

کله چې دوه یا زیات کمپیوټرونه له یو بل سره ترل شوي وي ، یو یو جال یا شبکه جوړوي. هغه څوک چې د جال په مرسته ترل شوي کمپیوټرونه کاروي له یو بل سره معلومات شریکولی او یو بل ته پیغامونه لیږلی او ان په عیني وخت کې عیني پروګرامونه په څو کمپیوټرونو کې چلولی شي.

## انټرنیټ

انټرنیټ هم د جال په څیر دی ، خو لږ پراخه دی. په حقیقت کې انټرنیټ له ګڼو بیلابیلو سره ترل شویو جالونو څخه جوړ دی.

په ۱۹۸۰م کال کې د ساینسپوهانو یوې لویې ډلې د نړۍ له بیلابیلو برخو څخه په عیني پروژې کار کاوه. دوی د معلوماتو د شریکولو لپاره یوې داسې چټکې طریقې ته اړتیا درلودله چې د پستې له لارې د پیغامونو د لیږلو په نسبت یو څه ګړندی کار وکړي. ساینسپوهانو یو داسې جال جوړ کړ چې نه یوازې یې د یوې ودانۍ بلکې د نړۍ د ګوټ ګوټ کمپیوټرونه سره وترل.

د نړۍ په کچه غځیدلي دې جال ته یې د انټرنیټ نوم ورکړ. نن ورځ هر سړی انټرنیټ پلټلی شي. انټرنیټ له ۶۰۰۰۰ زیات جالونه سره ترلي دي چې هر یو یې د مقالو ، عکسونو او غږونو خپلې خپلې ټولګې لري.

د انټرنیټ کارونه

په انټرنیټ کې تاسې ډیر شیان کولی شئ. څو دوه تر ټولو مشهور یې بریښنالیک یا ایمیل او پر نړیوال غزیدلي جال د پاڼو پلټل دي.

د انټرنیټ تر ټولو عامه کارونه د ایمیل ده. د ایمیل په مرسته تاسې پر خپل کمپیوټر یو بریښنایي لیک لیکلی او سمدستي یې یو بل کس ته چې که حتی د نړۍ په بل کوټ کې وي لیږلی شئ. تاسې له بریښنالیک پیغام سره عکسونه او غږونه هم لیږلی شئ.

په دې مثال mrsteve@jlab.org: ایمیل آدرس داسې ښکاري د هغه سړي نوم دی چې ایمیل ترلاسه کوي. دې mrsteve کې نوم پسې د (@) نښه راځي چې جال ته د ا معلومات ورکوي چې راتلونکی نوم د سرور یا پالنګر دی. په دې قضیه کې د ایمیل د سرور ادرس دی Jefferson Lab. د "jlab.org"

په ښه هم مشهور دی ، www نړیوال غزیدل جال چې د ویب یا له میلیونونو لاسوندونو جوړ دی چې ویبپاڼې یې بولي. پر دې پاڼو متن ، ولاړ او خوځنده انځورونه او غږونه راټلای شي. کله چې د یوې ویبپاڼې له کتلو فارغ شوئ ، پر یو بل لنډلار یا شارټ کټ چې هایپرلینک یې بولي کلیک وکړئ څو له یوې بلې

ويبپاڼې سره پيوست شئ.

پر ويب زياتره سازمانونه د پاڼو ټولګې لري چې له يو بل تړل شوي او د ويبسايټ په نامه يادېږي.

انټرنيټ څه ډول کار کوي ؟

له زرګونو فردي جالونو څخه چې انټرنيټ تشکيلوي ، هر يوه ، يو يا زيات کمپيوټرونه د سرور لپاره ځانګړي کړي دي. دغه سرور کمپيوټرونه د انټرنيټي سايټونو لپاره د هاسټ يا کوربه رول لوبوي او د کمپيوټر کارونکي لپاره د معلوماتو د ترلاسه کولو يو داسې چوپړ برابروي لکه يو ګارسون چې په هوټل کې د خوراک چوپړ برابروي. همداراز لکه د هوټلونو په څېر له دې سرورونو څخه هر يو خپله خپله پته هم لري.

انټرنيټي پتې

يا د انټرنيټي منابعو (URLs) انټرنيټي پتې د يو آر ايل متحد الشکل موندونکي په نامه يادېږي. ځينې اوږده او پيچلي او نور يې که څه هم خورا لنډ وي خو ټول يو ډول په لاندې ډول ښکاري URL دود تعقيبوي. يو معمولي:

په هره پته کې لومړنۍ توري جال ته دستور ورکوي چې له کوم پروټوکول څخه کار واخلي. پروټوکول د يوې ژبې په څېر دی — ته بايد پوه شې چې په کومه ژبه بايد خبرې وکړې. له زياتو استفاده شويو پروټوکولونو څخه يوه هم دی چې HyperText Transport Protocol يا http معنی يې د لوی متن د ليږدولو پروټوکول دی.

له دې پسې د دومين نوم راځي. دومين نوم د هغه کمپيوټر نوم دی چې ته ورسره تماس نيول غواړې. ځينې وخت د دومين پای ته په کتو سره تاسې ويلی شئ چې کوم ډول سايټ کتل غواړئ. هغه دومين نوم چې په پای ته رسيږي معمولا په دې معنی دی چې نوموړی org. سايټ د کوم غير انتفاعي سازمان له خوا کارول کيږي. ختميږي د حکومتونو سايټونه gov. هغه سايټونه چې په ختميږي معمولا د ښوونيزو ادارو edu. او هغه چې په لکه کالج او پوهنتون سايټونه دي.

راتلونکې برخه د فايل يونلور ښيي. دا برخه URL د کمپيوټر ته ښيي چې ستا د اړتيا وړ فايل چيرته پروت دی.

وروستۍ برخه د فايل نوم دی ، او دا د هغه URL د فايل نوم دی چې تاسې يې غواړئ. فايلونه چې په .html ختميږي د متن هغه فايلونه دي چې د HyperText يا د لوی متن د نښه کولو په ژبه Markup Language ليکل شوي دي او په ويب پلټونکو يا ويب براوزر کې پای ته jpg. او gif. کارول کيږي. هغه فايلونه چې په mp3. او wav. رسيږي ګرافيک فايلونه او هغه چې په mp3. او wav. پای ته رسيږي غږيز فايلونه دي.چې په پای ته رسيږي غږيز فايلونه دي.



# لوبې





## قطر

## مالیې وزیر وایي، د دغه هېواد حکومت د فوټبال ۲۰۲۲ کال فیفا نړیوال جام سیالیو پر چمتووالي هره اونۍ ۵۰۰ میلیونه ډالره لګښت کوي.

د مالیې وزیر علي العمادي وایي ، داسې احتمال شته ، چې د فوټبال نړیوال جام سیالیو لپاره د چمتووالي دغه لګښت به له دریو تر څلورو کلونو پورې دوام وکړي.

دغو پروژو کې د نویو لوبغالیو ، لویو لارو او اورګاډي پټلیو رغوونه شامل دي.

قطر د ۲۰۲۲ فوټبال نړیوال جام لپاره ۲۰۰ بیلیونه ډالر لګوي. خو د مالیې وزیر هغه رپوټونه رد کړل ، چې ګواکې د ۲۰۲۲ نړیوال جام به د تېرو دغه ډول سیالیو پرتله ډېر لګښت ولري. برازیل د ۲۰۱۴ کال نړیوال جام پر سیالیو ۱۱ بیلیونه ډالر لګښت کړی و ، خو روسیې د ۲۰۱۸ کال سیالیو لپاره ټولټال لګښت کې ۳۲۱ میلیونه ډالر زیات کړي دي.

برازیل د نړیوال جام لپاره د لوبغالیو جوړولو لپ کې له ستونزو سره مخامخ و ، خو د ښاغلي علي په وینا قطر دې لپ کې نژدې ۹۰ سلنه هوکړې کړې دي .
نوموړی وایي ، موږ غواړو ځان ته دومره وخت ورکړو ، چې د سیالیو له پیله مخکې دغه پروژې بشپړې کړو.



هغه وايي، موږ نه غواړو، چې يوه لور ته خلک سياليو ته را روان وي او بل لور ته موږ ديوالونه رنګوو. قطر کې د نړيوال جام سياليو لپاره د ودانيزو چارو شرکتونو له بهره زرګونه مزدوران دغه هېواد ته بللي، چې ډېری يې د سويلي اسيا اوسېدونکي دي.

بل لور ته د بشري حقونو فعالان وايي، دغه مزدوران په سختو شرايطو کې کار کوي او حقونه يې تر پښو لاندې کېږي. خو قطر حکومت دغه ادعاوې بې ځايه بولي او ردوي يې. علي العمادي ويلي، د نفتو او ګازو د بيو له کبله به د نړيوال جام سياليو لګښتونه کم نه شي.

تېر کال د قطر بوديجه کې ۱۲ اعشاريه اته ميلیارده ډالره کسر اټکل شوی و او د ۲۰۱۷ کال لپاره دغه اټکل اووه اعشاريه اته ميلیارده ډالره دی.



# تېنس

## راجر فېډرر د استراليا پرانيستو سياليو اتلولي وګټله

تېنس کې د استراليا پرانيستو سياليو پايلوبه کې د سويس راجر فېډرر د اسپانيا رفايل نډال ته له يوې سختې سيالۍ وروسته ماته ورکړه او اتلولي يې وګټله.

د دواړو تر منځ لوبه تر ۴ نيم ساعتو وغځېده ، پای کې فېډرر ۳- ۲ وګټله.

دا تېنس ګرانډ سلم اتلوليو کې د راجر فېډرر ۱۸ برى و چې يو نوى رېکارډ دی.

دی د تېنس نارينه سياليو کې لومړی لوبغاړی دې چې ۳۵ کلنۍ کې يې ګرانډ سلم اتلولي وګټله.

۳۵کلن فېډرر او ۳۰ کلن نډال تر دې وړاندې د تېنس اتلوليو په اتو پايلوبو کې سره مخامخ شوي وو چې وروستۍ هغه يې په ۲۰۱۱ کال کې د فرانسې پرانېستو سياليو پايلوبه وه.

راجر فېډرر او رفايل نډال نارينه تېنس سياليو په عصري تاريخ کې تر ټولو تونډ سيالان يادېږي.

د استراليا پرانېستو سياليو نه وړاندې فېډرر تېرې وو او شپږ مياشتې يې تېنس لوبه نه وه کړې. دی وايي له شپږ مياشتني ځنډ وروسته يې هيڅله داسې نه و انګېرلي چې د استراليا پرانېستو سياليو کې به دې پړاو ته ورسيږي.راجر فېډرر له ۲۰۰۷ کال راهيسې نه و توانېدلی رفايل نډال ته د کومې اتلولۍ پايلوبه کې ماته ورکړي.



# افغانستان

## د ټسټ کرکټ دریځ ترلاسه کولو ته نږدې شوی



**جاوید همیم کاکړ**

د کرکټ نړیوالې شورا لخوا د افغانستان کورني کرکټ په رسمیت پېژندلو سره د بشپړ غړیتوب ترلاسه کولو ته افغانستان نور هم نږدې شو.

د کرکټ نړیوالې شورا څو ورځې مخکې په خپلې دوه ورځنۍ غونډه کې د نورو پرېکړو ترڅنګ د افغانستان د کورني کرکټ احمدشاه ابدالي څلور ورځنیو سیالیو ته د (فرسټ کلاس) او د شپږیزې شل اووریزې سیالیو ته د ( الف کلاس) درجې اعلان وکړ.

د افغانستان کرکټ بورډ د کورني کرکټ مسوول نظیم جار عبدالرحیمزی وایي چې د نړیوالې شورا یادې پرېکړې سره دوی هغې سترې هیلې ته ورسېدل چې د لاسته راوړلو لپاره یې شپه او ورځ زحمتونه ګاللي دي.

هغه زیاته کړه : ((موږ د خپل کورني کرکټ د څلور ورځنیو سیالیو د مسلکیتوب انځور د پروپوزل په شکل د کرکټ نړیوالې شورا ته وړاندې کړ او د کرکټ نړیوالې شورا لخوا د افغانستان د کورني کرکټ څلور ورځنیو سیالیو ته په رسمي ډول د لومړی درجې سیالیو دریځ ورکړ.

نظیم جار هیله څرګنده کړه چې د روان زېږدیز کال د اپریل تر میاشتې پورې به د ټیسټ دریځ او او د ۱۳ لوبډلو ترمنځ د نړیوالو یو ورځنیو سیالیو د لړۍ پروپوزل هم ومنل شي .

د کورني کرکټ مسوول وایي چې دغو لاسته راوړنو سره به افغانستان له بشپړ غړیتوب څخه یوازې د یو ګام واټن کې پاتې شي او ډېر ژر به دغه لاسته راوړنه هم ولري.

جار وایي ، د افغانستان کورني کرکټ ته د یاد دریځ ورکولو سره یوه ګټه داده چې دې سیالۍ نړیوال رسمیت پیدا کړ او له دې وروسته د کورنیو سیالیو د لوبغاړو لاسته راوړنې د کرکټ له نړیوالې شورا سره ثبتېږي.

هغه زیاته کړه چې د نورو هېوادونو د کورني کرکټ څخه لوبغاړو د نورو هېوادونو په لیګونو کې ددوی د ثبت شوو معلوماتو په اساس اخیستل کېده ، خو افغان لوبغاړو دا معلومات نه درلودل.

جار وویل ، دوی به هڅه کوي چې د کورني کرکټ معیار نور هم ښه او له نړیوالو معیارونو سره یې برابر کړي.

د نوموړي په وینا ، دوی به له دې وروسته د کورني کرکټ پر مهال د لوبډلو په انتخاب کې هم له ډېر غور او فکر څخه کار اخلي ، څو پیاوړي لوبغاړي رامخې ته شي.

د کرکټ د چارو کارپوه لیکوال او ژورنالېسټ مطیع الله عابد وایي چې کورني کرکټ ته د فرسټ کلاس دریځ ورکول کېدل ، افغانستان لومړي دریځ ترلاسه کولو ته یو قدم نور هم نږدې شو.

هغه وايي چې د کرکټ نړيوالې شورا په نړيواله کچه د افغانستان کرکټ تسليمولو وروسته د افغانستان کورنی کرکټ هم په رسميت وپېژاند چې لويه لاسته راوړنه ده.

د عابد په وينا ، دا او نورې لاسته راوړنې د هغو ټولو د کار ، زيار او محبت نتيجه ده چې دافغانستان لپاره يې کوي.

هغه وايي ، کله چې په اپريل کې مياشت کې د کرکټ د نړيوالې شورا غونډه کېږي ، نو ډېر احتمال شته چې افغانستان ته د ټسټ درجې دريځ ورکړي.

نوموړي وويل ، تر ۲۰۱۹ کال وروسته به دټسټ کرکټ کوونکو ټيمونو دوه ډلې وې ، يوه کې نهه او بله کې درې چې افغانستان ايرلينډ او زمبابوې به په وروستۍ کټګورۍ کې شامل وي.

خو عابد زياتوي چې دغو درېيو وروستيو ټيمونو ته به د نهو پياوړو لوبډلو سره هم د ټسټ لوبو چانس ورکول کېږي.

هغه وايي : (( د دې خبرونو معنا دا شوه چې افغانستان ته د کرکټ نړيوال ډګر کې اهميت ،عزت ، حيثيت او د ډېرو لوبو فرصت په برخه کېدونکی دی.))

د کرکټ د چارو بل کارپوه او د لوبې سپورټي ټولنې مشر رحيم ګل څاروان وايي چې د افغانستان کورني کرکټ پخوا د کرکټ له نړيوالې شورا سره رسميت نه درلود او نه يې لاسته راوړنې له نړيوالې شورا سره ثبتېدلې.



# PSL

## ناصر جمشید هم له لوبو منع شو

**ناصر جمشېد د پاکستان له لوري په دوه ټېسټ، ۴۸ يو ورځنيو او ۱۸ شل اوريزو نړيوالو لوبو کې لوبېدلی دی.**

د پاکستان کرکټ بورډ خپل پخوانی اوپنر (پیلوونکی لوبغاړی) ناصر جمشید فساد سره د مبارزې اخلاقي کوډ نه د سرغړونې له امله په موقتي ډول ځنډولی او د کرکټ هرډول لوبو کې يې له ګډون نه منع کړی دی.

دا خبره لومړی د پاکستان سوپر لیګ سیالیو رییس نجم سیټي پر خپل ټویټر وکړه او وروسته د پاکستان کرکټ بورډ مطبوعاتي خبرپاڼه خپره کړه.

بلخوا اسلام اباد یونایټېډ د خپلو دوو لوبغاړو خالد لطیف او شرجیل خان تر ځنډولو وروسته ، ۴۰ کلن اوپنر بېټسمېن رفعت الله مهمند د پاکستان سوپر لیګ سیالیو کې په خپله لوبډله کې نیولی دی.
خالد لطیف او شرجیل خان د فساد د تورونو له امله د پاکستان سوپر لیګ له لوبو ویستل شوي او هغوی ته د لامل خبرتیا هم استول شوې ده. دغه دوه پاکستاني لوبغاړي له لوبو تر ځنډول کېدو وروسته بېرته هېواد ته ستون کړای شوي دي.
ددغو دوو لوبغاړو تر ځنډېدو وروسته د ناصر جمشېد نوم هم د چارواکو لخوا اخیستل کېده او ورته ویل شوي و چې هغه شرجیل خان او خالد لطیف ته له یوه مشکوک کس سره د لیدلو خبره کړې وه.

## پي ایس ایل




هغه فرسټ کلاس کرکټ کې ۱۲ سلیزې وهلي او په ملي کچه يې په شویو ۵۶ شل اوریزو سیالیو کې ۵ پنځوسيزې بشپړې کړې دي.

ناصر جمشېد د پاکستان له لوري په دوه ټېسټ ، ۴۸ یو ورځنیو او ۱۸ شل اوریزو نړیوالو لوبو کې لوبېدلی دی. په نړیوالو یو ورځینو لوبو کې هغه درې سلیزې جوړې کړې دي.



هغه په وروستي ځل د پاکستان لپاره په ۲۰۱۵ کال کې په نړیوالو جام سیالیو کې لوبه کړې وه ، خو په دغو نړیوالو سیالیو کې یې لوبه ډېره بې خونده وه.





# غزل

وینښ ولس

**همت**

په نړۍ کې د مولا عجب نظام دی
په چا شپه په چا غرمه په چا ماښام دی

دغه ویش دی له ازله نه بدلېږي
کم یې مه ګڼه ډېر ډک دغه کلام دی

د چا خوی وي د اوبو اورونه وژني
ځینې هار د خپل ولس او د خپل قام دی

ثوک د بل غمو اخیستی وي تپېږي
د چا لاس کې د خپل ورور لپاره دام دی

ثوک په رنګ جاموکې سپین ښکاري مخلوق ته
ثوک د بل له لاسه تور ښکاري بد نام دی

ثوک د مځکې په سر ژوند لکه د غله کا
ثوک ختلی د حسرت پر اوچت بام دی

ثوک د مځکې زړه ته ځي پټېدی نشي
دا پراخ جهان سور اور ورته مدام دی

ثوک د بل په چوپړ زوړ ملا یې کږه شي
ثوک را ستر په باداړۍ مشر امام دی

دا توپیر یوازې زموږ په خاوره نه دی
د نړۍ په هر یو ګوټ او هر یو ګام دی

"څه په ګډو وډو سر شولې "همته
ستا کلام هم د منصف په تله خام دی




## د مولوي جلال الدين بلخي نصيحتي نظم

په ځوانمردۍ کښې

په مرسته کې

لکه د روانو اوبو په شان اوسه!

په شفقت په مرحمت کښې

لکه د لمر غوندې اوسه!

دنورو کسانو د عيبونو په پرده پوښۍ کښې

لکه د شپې غوندې اوسه!

په شدت او

عصبايت کښې

د مړګ په شان اوسه!

په تواضع

په حلم او فروتني کښې

د خاورې غوندې اوسه!

په ښه نظر لرلو=سمپاتي=اوپتيميزم کې

لکه بحر(سمندر) په شان اوسه!

يا هغسې چې په اصل کښې يې ، ځان ښيیه!

يا لکه په ظاهر کې چې ښکارې ، همرغه شان اوسه!=شه!!

دا اخري بيت په دري کښې خلک وايي: "چيزې که هستي ، همو طو باش!!

ډاکټر حميدالله